**دکتاب مشخصات:**

**دکتاب نوم:** د اسلام ساتونکي ته

**لیکــوال:** شهید محمد عمر منیب

**چاپ کال:** شوال/ ۱۴۴۲هق/ جوزا/۱۴۰۰هش

**چاپ وار:** لومــړی

**تیـــــراژ:** ۳۰۰۰

**دخپرونو لړ:** ۲۸

**خپروونکي اداره:** فرهنګي کمیسیون د تألیف او ژباړې څانګه

# ډالۍ

**هغو شهیدو ارواوو ته چې:**

د لویدیځ وحشي ښامارېې په ایماني توره د زوال وروستۍ سلګۍ ته ورساوه.

**هغو کباب شویو اندامونو ته چې:**

خپل تاریخ یې د خپلې سپېڅلې وینې په رنګ په ابدي پاڼو کې ثبت کړ.

**هغو ښکلاوو ته چې:**

د الله تعالی په لاره کې د ځانونو په کبابولو یې د صحابه کرامو د مزلونو تت شوي خاپونه بیا راتازه کړل.

# فهرست

# د تألیف او ترجمې ادارې یادونه

د تألیف او ترجمې اداره داځل درته د یو با احساسه پر دین او وطن مین استشهادي شازلمي خورا ګټور او په فن کې ممتاز اثر وړاندې کوي.

دهمدې اثر نوم دی«د اسلام ساتونکي ته!»، استشهادي مجاهد مولوي محمد نبي/ عمر منیب (عبدالحلیم) لیکلی او په جالب انداز یې ترتیب کړی دی، د دې کتاب یو بل امتیاز دا دی چې جهادي- علمي مضامین یې په معیاري او ادبي ژبه لا ښکلي او جذاب کړي دي.

د دې کتاب په چاپ سره د تألیف او ترجمې ادارې د چاپ شوو اثارو شمېر (۲۸) ته رسیږي، موږ هڅه کوو چې نور ګټور اثار هم ترتیب او چاپ کړو او د هیواد په ګوټ ګوټ کې یې تر لوستونکو ورسوو.

د دغه کتاب لوست د هر چاه لپاره ډېر ګټور دی، په ځانګړې توګه د مجاهدینو لپاره خو بیخي ډېر ارزښت او ګټه لري، نو هر مسلمان ورور همدا مهم کتاب باید ولولي، عمل ورباندې وکړي او تر ملګرو او ورونو یې ورسوي.

الله تعالی دې همدا کتاب د شهید لیکوال روح ته جاریه صدقه او لوستونکو ته د لارې بل مشال وګرځوي!.

امین یارب العالمین!

د ا.ا.ا. فرهنګي کمیسیون د تألیف او ترجمې اداره

۱۴۴۲هـ ق،شوال/ ۱۴۰۰هـ ش، جوزا/۲۰۲۱ز، جون

# استشهاد؛ جنون که شعور؟!

استشهاد د قربانۍ او ایثار تر ټولو هسک منار او اوچت مقام دی. هر مبارز دې لوړ ځلي ته د ختلو زړه نشي کولای. کوم کسان چې دې منار ته پورته شوي او یا په همدې تکل کې د انتظار شېبې ګالي، یقینا د مظلوم ملت محسنان دي او د احسان یې پوره وړي یو.

محمد عمر منیب د شهادت غوښتنې اوږد انتظار وکړ. بالاخره سر. کال خپل ارمان د شهادت عالي مقام ته ورسید.انا لله وانا الیه راجعون

محمد عمر منیب د ښو صفتونو او کمالونو څښتن و. استشهادي معسکر کې زده کوونکی او بیا ښوونکی شو. دیني زده کړې یې پای ته رسولې وې. له عصري زده کړو څخه هم په ښو نمرو فارغ شوی و. شاعر، ویناوال او ښه تکړه لیکوال و. ګڼ شعرونه، لیکنې، شرعي صوتي دوره او لاندې اثار یې په میراث راته پرېښي دي.

- د خبیب له داره د معاصر استشهاد تر مداره
- زه ولې استشهاد ته وهڅېدم
- تلپاتې جنت او د ور رسیدلو لارې چارې
- د شهادت فضیلت

او همدا کتاب( د اسلام ساتونکي ته ) د شهید عمر منیب وروستی اثر دی. په دې کتاب کې د جهاد، شهادت، اعداد، اطاعت، اخوت، محبت او ..... فضیلتونه او د غیبت، بهتان، حسد، ریاء، تکبر، عیب لټونې، اختلاف، او ځانځانی بدی بیان شوې دي. همدا کتاب په سنګر او دفتر کې د مجاهد او مبارز لارښود ملګری او د

لارې روښانه څراغ دی. مجاهدين او مبارزين کولای شي د دې مشال په رڼا ځان له تيندکونو او ګړنګونو وساتي او تر مقصود منزل پورې سلامت او موفق ورسيږي.

په دې کتاب کې د نفس د تصفيې او تزکيې لارې او تجربې هم په ګوته شوې. دلار ورکی څخه د خلاصون او د اصلاح سببونه او علتونه په علمي او منطقي انداز پکې بيان شوي دي.

د همدغه کتاب يوه لويه او خورا ګټوره ځانګړتيا دا ده چې د ښکاره او پټ دښمن ( شيطان او لارويان يې ) سره د مقابلې او له فريبونو يې د ځان ساتنې لارې چارې را ښيي. د جهادي اعداد، استقامت، صبر، ذکر، استغفار، لمانځه او دعاء تلقين را کوي. د دې کتاب لوستل د عامو مجاهدينو، مسؤلينو او په مجموع کې د جهادي صف د مشرانو او کشرانو لپاره يوه اړتيا او لويه لاسته راوړنه ده.

«د اسلام ساتونکي ته» په فن او ژبه کې کمساری او له بېلابېلو مزاياوو مالامال اثر دی،د شهيد ليکوال د علمي ځواک او قوي استدلال يو مثال دی او په معنی کې د درد او عشق يو ګرداب دی .

ماده پرست عناصر چې د معنی له خوند، درد او احساس څخه بې برخې دي، د استشهاد انګېزه په ماده پورې غوټه کوي او يا يې بې خودۍ ته منسوبوي. د مادي مينې د دوی شعور او حواس معطل کړي او له امله يې په همدې پړپړو سر دي.

عمر منيب زموږ د استشهادي کاروان يو سپاهي دی. د همدغه کتاب په مطالعه کولو سره د نوموړي د پوهې، فکر، مينې او احساس درک کولای شو. ايا د جبر او يا بې خودۍ په حالت کې کيدای شي چې څوک دومره تحقيق، پلټنه او معياري ليکنه وکړي؟. کوم سالم عقل به ومني چې د جنون په حالت کې دې څوک دومره ايثار ته را وړاندې شي چې د ځان په فناء کې د ملت بقاء ولټوي؟. دعقل، طب او نوي ساينس هيڅ يوه جزئيه هم د ماده پرستو روشنفکرو همدا اپلتې نه تائيدوي.

استشهاد د پاک احساس، دردمن زړه او د شعور د کـمال يـو قـوي مظهـر دی.
داچې کمونست او سيکولر پرديپال همدا شعور،درد او معنی نشي حس کولای،دا د همدې ماده پرستانو لويه ستونزه او د حماقت انتهاء ده!!

په مينه او درناوي

حافظ نور احمد سعيد

د شهيد يار د شفاعت په هيله

جوزا ۱۴۰۰هـ ش

# د پيل په پلمه

## د صحابه کرامو د پلونو ځار

د مشرکينو لښکر ته تر ټولو ډېر رسول الله صلی الله عليه وسلم نږدې دی، د رسول الله صلی الله عليه وسلم غږ وو: هغه جنت ته پاڅېږئ! چې پلن والی يې د ځمکې او آسمانونو برابر دی. تنکی استشهادي مجاهد عمير ابن الحمام رضي الله عنه راپاڅېد، يا رسول الله صلی الله عليه وسلم! دومره جنت چې پلن والی يې د ځمکې او آسمانونو برابر دی؟؟؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم ځواب ورکړ: هو! عمير رضي الله عنه ناڅاپه وويل: واه واه! رسول الله صلی الله عليه وسلم پوښتنه وکړه: څنګه دې واه واه وويل؟ ځواب يې ورکړ: يا رسول الله! قسم په الله صرف پدې هدف مې وويل چې زه هم د دې جنت له اهل څخه شم. کله چې عمير رضي الله عنه د رسول الله صلی الله عليه وسلم دا ځواب واورېد چې: فَاِنَّکَ مِنْ اَهْلِهَا. ته له همدې جنتيانو څخه يې! نور يې نو له دنيا سره هغه معامله پيل کړه چې تر نن ورځې پورې د استشهاد د فکر لارښود پاتې شو، نور يې يواځې خبرې پرېښودې او د جنت بشارتونو ته يې ځان په درسونو او دعوتونو رسول نه غوښتل، نور يې غوښتل چې د هغه استشهادي لښکر لومړنی لارښود شي چې تر قيامته به د دجالي لښکر په مخ کې د فولادي دېوالونو په څېر درېږي.

څو شېبې وروسته د خپل لاس څو خرماوو ته ګوري او وايي: که زه دومره ژوندی پاتې شم چې دا خرماوې خلاصې کړم دا خو ډېر اوږد ژوند دی، خرماوې يې لرې واچولې، او د استشهاد لارښود د دښمن په صفونو کې لارې جوړولې تر څو يې چې د استشهاد په لاره ځان تر خپل رب پورې ورساوه.

د اسلام د سپېڅلي دين لومړنۍ سترې غزا د استشهاد عملي درس وړاندې کړ، عملا يې وښودله چې د اسلامي دين دفاع له پيل څخه د استشهاد په لاره پيل شوه، او امت ته يې دا درس پرېښود چې د متعال رب د دين او د هغه د محبوب پيغمبر صلی الله عليه وسلم دفاع يوازې د دعوت او خبرو کار نه دی، بلکې د خپل سر په قربانولو سره دا ثابتول غواړي چې مونږ ته خپل دين تر خپل ځان لوړ ارزښت لري.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم نازوليو صحابه کرامو سره غدر شوی، ډېر يې شهيدان شوي او قريش د استشهادي مينې د لاربښود خبيب بن عدي رضي الله عنه د اعدام صحنې ته انتظار دي، په همدې شور ماشور کې د خبيب رضي الله عنه غږ اورېدل کيږي: که مې لږ پرېږدئ چې دوه رکعته لمونځ وکړم. تر لنډ لمانځه وروسته په کامل جرئت سره په لوړ غږ وايي: که نه وېرېدلی چې تاسو به وايئ چې خبيب له مرګ څخه وېرېږي خپل دا وروستی لمونځ به مې ډېر اوږد کړی وو.

له نازک بدن څخه وينې روانې دي او د رسول الله صلی الله عليه وسلم له محبت څخه د تېرېدلو غوښتنه ترې کيږي، بيا هم خبيب رضي الله عنه وايي: په الله قسم دا هم نه خوښوم چې زه دې په پوره امن په خپل کور کې ناست و اوسم او د رسول الله صلی الله عليه وسلم په پښه کې دې يو ازغی تللی وي.

راټول شوي له کرکې ډک زړونه ټول ورته ګوري چې خبيب رضي الله عنه د استشهاد راتلونکي کاروان ته خپل پيغامونه پرېږدي:

فَلَسْتُ أُبَالِيْ حِيْنَ أُقْتَلُ مُسْلِمًا    عَلَى أَيِّ جَنْبٍ كَانَ فِي اللهِ مَصْرَعِيْ

يعني: « هيڅ پروا مې نشته چې مسلمان وژل کيږم= پر هر اړخ چې د الله په لار کې ساه ورکوم (زما لپاره افتخار دی)

په پوره نرتوب سره د دار کړۍ ته غاړه هسکوي او تر قيامته راتلونکي فدايي کاروان ته د مرګ لپاره د لبيک ويلو درس پرېږدي.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم له وفاته ډېره لږه موده تېره شـوې، خـو نـور د صدیق اکبر رضي الله عنه د صبر جام ډک شوی و، او نور یې هغو خلکو تـه وخـت ورکول نه غوښتل چې د رسـول اللّـه صـلی اللّـه علیـه وسـلم تـر وفـات وروسـته یـې سرکشۍ ته لارې هوارولې.

د الله تعالی ویستلې تورې (خالد بن ولید رضي الله عنه) په الهي دین د غیـرت بیرغ هسک نیولی او د مرتدینو دماتې په هوډ توره چلـوې، د کفـري ځواکونـو عـزم هم له هسک آسمان سره خبرې کوي تر دې چې د اسـلامي پـوځ د سر لښـکر او د الله تعالی د تورې تر خیمې را ورسېدل.

اسلامي ځوانانو هم هغه سرښندنې پیل کړې چې تاریخ یې ځان ته هک پـک کړ: د انصاري مجاهدینو بیرغ ثابت بن قیس رضي الله عنه نیولی، په ځان یـې عطـر وهلي، کفن یې تر ځان تاو کړی او د اسلام د ساتنې جګړه په مخ وړي.

بل خوا د زید بن الخطاب رضي الله عنه غږ اورېدل کیږي چې نعرې وهي: مؤمنانو! تورې مو کلکې ونیسئ! دښمن مو سم له تېغ تېر کړئ او مخ په وړاندې ځئ!

لږه شېبه وروسته د سالم رضي الله عنه غږ واورېدل شـو چـې خپلـو ملګـرو تـه اطمنان ورکوي او وایي چې: قسم په الله! که زما لخوا دښمن را مخکې شو نـو زه بـه ډېر بد حافظ یم.

خو د الله تعالی د تورې نظر بیا هغې زړورتیـا وړی چـې وایـي: اې انصـارو! دا فکر مه کوئ! چې بیرته به مدینې ته وګرځئ! نور مدینې ته ورتلل نشـته! اللّـه تعـالی یو دی او مخته مو جنت دی!

همدا خبرې وې او نور د براء ابن مالـک رضي اللّـه عنـه استشـهادي ګـروپ د دښمن په صـفونو کـې لارې جـوړولې، د تـورو غږونـه دي چـې ککـرۍ لـه سرونـو بېلوي، استشهادي ځوانانو د براء ابن مالک رضي الله عنـه پـه مشرۍ نـور د مسـیلمة الکذاب د لښکر پښـې سسـتې کـړې وې، او د مسـیلمه لښـکر نـور د اللّـه د تـــورې

(خالد بن ولید) د لښکر په مقابل کې تاب رانه وړ، او د مرگ د کندې په لور یې منډې وهلې.

د څلوېښتو زرو جنگیالیو پاتې شونو د مرگ د کلا دروازې په ځان پسې بندې کړې، اسلامي ځوانانو ډېرې هڅې وکړې چې ځان ورته ورسوي. د مجاهدینو په منځ کې د براء ابن مالک رضي اللّٰه عنه غږونه اورېدل کیږي: اې خلکو! ما په ډال کې کښېنوئ! ما په دېوال ور واړوئ! یا درته دروازه خلاصوم یا به شهید کېږم. اې خلکو ما په ډال کې کښېنوئ!

د سترگو رپ و او له دېوال هاخوا د براء بن مالک رضي اللّٰه عنه د تورې برېښنا د مرتدینو له سترگو د ژوند غفلت لرې کاوه. د تکبیر په غږ سره د مرگ د کلا لویه دروازه خلاصه شوه او اسلامي پوځ د سېلاب غوندې خپور شو. څو شېبې وروسته د وحشي بن حرب رضي اللّٰه عنه په نیزه کې د مسیلمه کذاب سر په هوا کې تاوېده.[۱]

د فکر زانگو نوي ټالونه پیل کړي ول. معاصر جهاد او استشهاد یې د بدر او یمامې له یادگارونو سره پرتله کاوه. عجیبه وه: هغو خلکو چې د براء بن مالک، خبیب بن عدي، زید ابن الخطاب، خالد بن ولید، او عمیر ابن الحمام رضي اللّٰه عنهم په پلونو پل ایښی وو، لېوني بلل کېدل، خلکو یې پښې وهلې، تجذب یې ورته وایه، نړیوالې او داخلي دجالي میډیا یې پر ضد پروپاگند کاوه او جهاد او دیني علم ته ځینو منسوبو بیا غوښتل چې د قرآني آیتونو په تحریف او باطلو تأویلونو سره د همدې لا تېزېدونکي جهادي کاروان مخه ونیسي.

معاصر فرعونیان غرقېدونکي نیل ته خپله راغلي ول، او د عمري، منصوري او جلالي فاتحو زلمیو له صاعقو څخه خلاصېدل ورته نا ممکن برېښېدل.

---

[۱] مأخذ: د سیرت او اسلامي تاریخ بېلابیل کتابونه

د فکرونو لړۍ د عمل جامه غوښتله او د همدې لښکر زړه ته يې ځان رسول غوښتل. د قادر رب په نصرت هغه ورځې راورسېدې چې نور مې د خپل شهادت وروستۍ شېې ورځې شمېرلې او غوښتل مې چې د خپل صف ملګرو او د اسلامي امت د دفاع د وروستي - محکم مورچل (اسلامي امارت) سرښندونکو ته داسې ډالۍ پرېږدم چې د تل لپاره يې د لارې مشال د مبارکو اصحابو پلونه وي.

الحمدلله: د الله په نصرت سره نور زمونږ جهاد د فتحې درشل تـه رسـېدلی، او هغه خبرې چې اسلافو له ګمراهۍ څخه د جهادي صف د ساتلو لپاره اړينـې بللـې، زه يې هم د خپل ژوند په وروستيو شـپو ورځـو کـې خپـل نـازولي او محـترم صـف (اسلامي امارت) ته وړاندې کوم. او له متعال رب څخه هيله لرم چې زمـا دا کوښـښ د خپلې هغې رضا وسيله وګرځوي چې د موټر بم له عملي زيري وروسته د بـدن پـه ورکېدلو ځان ور رسول غواړم.

متعال ربه! دا هر څه قبول کړه! د اسلامي امارت د صـف د يـووالي، اصـلاح او قوت سبب يې وګرځوه! او د همدې لړې خوارۍ په بدل کې ما په هغه فضل ونـازوه چې د موټر بم بارود مې ستا حضور ته تر اړرو هم ذرې ذرې ورسوي.

آمين يا رب العالمين!

په درنښت محمد عمر منيب

بسم الله الرحمن الرحيم

# د سريزې پر ځای

الحمدلله الذي امرنا بالجهاد، و اعزنا بالاستشهاد، و رفع راية الحـق بنـــصره في البلاد، و الصلوة والسلام على سيدالانبياء، مؤسس قصر الشهداء، محمـد رسـول الله صلى الله عليه وسلم و على آله و اصحابه اصحاب السيف و الهدى و على من تـبعهم بالجهاد الى يوم الجزاء.

امابعد: قال الله تبارک و تعالی: إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُمْ بِأَلْفٍ مِنَ الْمَلائِكَةِ مُرْدِفِينَ (الأنفال/۹)

ترجمه: «ياد کړئ هغه وخت چې استغاثه به کوله تاسي رب خپل ته، نو الله در ورسيده له پاره د (فرياد) ستاسي چې ښشکه زه مرسته کوونکی يم لـه تـاسي سره پـه زرو تنو له پرښتو څني يوه په بلې پسې راتلونکې».

د الله تعالى له خوا څخه رالېږل شوی وروستی دين (اسلام) هغه رڼا ده چـې د باطل تيارې يې هېڅکله نشي زغملی، باطل د تل لپاره کوښښ کوي چـې د دې رڼـا ډيوې مړې کړي، د تل لپاره کوښښ کوي چې د دې سپېڅلې رڼا پالونکي يـا خـتم کړي او يا يې هم له خپل مسير څخه کاږه کړي. خو؛ د رسـول اللّـه صـلى اللّـه عليـه وسلم وينا ريښتونې ده چې ويلي يې دي: د تل لپاره به زما د امـت يـوه ډلـه پـه حـق باندې جنگيږي، او تر قيامته به ظاهره وي (مسلم).

د قرآني ارشاداتو او نبوی لارښونو په رڼا کې په زغرده ويلی شو چـې د رسـول الله د وړاندوينې ننني مصداق همدا مجاهدين دي چـې لـه ټـولې متجـاوزې کفـري نړۍ سره يې د مقابلې ټېر وهلی، خو د دې لپاره چې مونږ او تاسـو پـه خپـل دښـمن باندې برې تر لاسه کړو نو بايد له څو پړاوونو څخه تېر شو، ځکه؛ په عامه توگـه هـر

مؤمن او په ځانګړې توګه هر مجاهد له څلورو دښمنانو سره د جګړې پـه ډګـر کـې دی، سره لدې چې د الله تعالی له کومک او مرستې پرته په يوه هم بريـاليتوب نشي- موندلی.

لومړی دښمن: زمونږ خپل نفس دی، ځکه؛ د خواهشـاتو اتبـاع او ګنـاهونو تـه ميلان ټول د نفس ځانګړنه ده: الله تعالی فرمايي:

اِنَّ النَّفْسَ لَاَمَّارَةٌۢ بِالسُّوْءِ (يوسف/۵۳) ژبـاړه: «بېشـکه نفـس خامخـا ډېـر امـر کوونکی دی (هر وخت) په بدۍ سره، مګر هغه نفس چې رحم مهربانې پرې کـړې وي رب زما». -

سره لدې چې نفس زمونږ داسې برخه ده چې په هـېڅ امکـان ترېنـه خلاصـون نلرو، نو له نفس سره به څه کوو؟!

دوهم دښمن: شيطان دی، شيطان زمونږ هغه دښمن دی چې د سولې او اوربند امکانات هم نشته، ځکه؛ هغه په قسم سره زمونږ دښمني اعلان کړې، الله تعـالی يـې په اړه فرمايي: قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ إِلاَّ عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ (ص/۸۲)

ترجمه: «وويل: (ابليس) پس قسم دی په عزت ستا چـې خامخـا ګمراهـان بـه کړم هرو مرو دوی ټول، مګر هغه بندګان ستا له دوی څخه چې خلاص کړی شـوي دي (له شرک، شک او عصيان څخه چې مؤمنان دي)».

هو! شيطان زمونږ هغه دښمن دی چې نه يې وژلـی شـو او نـه هـم قتـال ورسره کولی شو. نو له شيطان سره بايد څه وکړو؟!

دريم دښمن: منافق دی، هغه چې لباس، شعار، څېره او خـبرې بـه يـې ټـولې د مؤمنانو او مجاهدينو په څېر وي خو الله تعالی فرمايي چې:

لاَتَعْلَمُونَهُمُ اللهُ يَعْلَمُهُمْ.

یعني (چې تاسي یې نه پیژنئ او الله تعالی یې پیژني) نو چې نه یې پېژنـو او نـه هم راته وحی کېدلی شي، نو څنګه به ترېنه ځان خلاصـوو او څنګـه بـه یـې مقابلـه کوو؟!

څلورم دښمن: حربي کافر دی، چې په اوسني وخت کې ورسره مقابله او جهاد کول له جنون سره برابر بریښي، ځکه هغه اسباب او وسائل چې لـه هغـوی سره دي، زمونږ اسباب ورته د نشت برابر دي. مثلا د هغوی بې پیلوټـه طیـارې زمـونږ لـه پاسـه ګرځي خو مخه یې نشو نیولی، همدا رنګه نور ټول اسـباب یـې زمـونږ لـه اسـبابو پـه سلګونو درجې لوړ دي.

نو له داسې څلورو قوي دښمنانو سره به څرنګه جنګیږو؟!

د دې خبرې لنډ ځواب همدا دی چې مونږ په خپـل زور نـه! بلکـې د الله پـه زور او مرسته سره غواړو چې د دې څلور واړو دښمنانو مقابله وکړو او بـاور مـو دی چې ان شاء الله خامخا به یې ماتوو.

مجاهدینو ورونو! که مونږ د الله تعالی فرائض عملي کړو، او په سننو او نوافلـو سره الله تعالی ته ځان محبوب وګرځوو بیا نـو د هـېڅ شي زور رابانـدې نـه رسـیږي. ځکه؛ الله تعالی په قدسي حدیث کې فرمـایي: عَن أَبِي هُرَيْـرَةَ قَـالَ قَـالَ رَسُـولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الله قَالَ مَنْ عَادَى لِي وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ وَمَـا تَقَـرَّبَ إِلَيَّ عَبْدِي بِشَيْءٍ أَحَبَّ إِلَيَّ مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَيْهِ وَمَا يَزَالُ عَبْدِي يَتَقَرَّبُ إِلَيَّ بِالنَّوَافِلِ حَـتَّى أُحِبَّهُ فَإِذَا أَحْبَبْتُهُ كُنْتُ سَمْعَهُ الَّذِي يَسْمَعُ بِهِ وَبَصَرَهُ الَّذِي يُبْصِرُ بِهِ وَيَدَهُ الَّتِي يَـبْطِشُ بِهَا وَرِجْلَهُ الَّتِي يَمْشِي بِهَا وَإِنْ سَأَلَنِي لَأُعْطِيَنَّهُ وَلَئِنْ اسْتَعَاذَنِي لَأُعِيذَنَّـهُ وَمَـا تَـرَدَّدْتُ عَن شَيْءٍ أَنَا فَاعِلُهُ تَرَدُّدِي عَن نَفْسِ الْمُؤْمِنِ يَكْرَهُ الْمَوْتَ وَأَنَا أَكْرَهُ مَسَاءَتَهُ [۲]

له ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې نبي اکرم صلی الله علیه وسـلم وویل چې بېشکه الله تعالی ویلي دي: کوم کس چې زما له ولي سره دښـمني کـوي

---

[۲](صحیح البخاري/ بَابُ التَّوَاضُعِ/ رقم الحدیث: ۶۵۰۲)

نو زه ورسره د جنګ اعلان کوم، او ماتـه زمـا بنـده پـه بـل شي دومـره نشي-رانـږدې کېدلی لکه په هغو شیانو چې ما پرې فرض کړي، او زما بنـده ماتـه پـه نوافلـو نـږدې کیږي تر دې چې زه ورسره محبت وکړم، کله چې زه ورسره محبـت وکـړم نـو زه یـې هغه د اورېدلو قوت شم چې هغه پرې اورېدل کوي، او زه یې هغه لید شم چې لیدل پرې کوي، زه یې هغه لاس شم چې نیول پرې کوي او زه یې هغه پښه شم چـې تلـل پرې کوي.

اوس راګرځو خپلې پوښتنې ته: مونږ به له نفس سره څنګـه مقابلـه کـوو؟! کلـه چې زمونږ غوږونـه، سـترګې، لاسـونه، او پښـې ټـول د اللّٰـه تعـالی د رضـاء سره سـم وچلیږي نو بیا به د نفس زور راباندې ورسیږي؟! نه! هېڅکله نه!

**مونږ به له شیطان سره څنګه مقابله کوو؟!**

د شیطان د مقابلې لپاره هم اللّٰه تعالی پـه همـدې قـدسي حـدیث کـې فرمـایي چې: وَإِنْ سَأَلَنِي لَأُعْطِيَنَّهُ وَلَئِنْ اسْتَعَاذَنِي لَأُعِيذَنَّهُ (که له ما څخه غوښـتنه وکـړي نـو خامخا به یې ورکوم او که له ما څخه پنا وغواړي خامخا به پناه ورکـوم) لـږ لـه ځـان سره فکر وکړئ! کله چې اللّٰه تعالی مونږ په خپل حفاظت کې وساتي بیا به د شـیطان وس راباندې بر شي؟! نه! هېڅکله نه!

کله چې له دې دوو دښمنانو څخه خلاص شوو خو راپاتې صرف دوه دښمنان شول چې یو منافق او بل حربي کافر دی، د همدې حدیث پـه پیـل کـې اللّٰـه تعـالی فرمایي: مَنْ عَادَى لِي وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْب (کوم کس چې زما له ولي سره دښـمني کوي نو زه ورسره د جنګ اعلان کوم) کله چې مونږ د اللّٰه تعـالی اولیـاء لـه ځـانونو څخه جوړ کړو نو بیا به زمونږ دښمنانو ته اللّٰه تعالی د جنګ اعلان کړی وي، او څـه فکر کوئ؟ کله چې یو بنده د اللّٰه تعالی په مقابل کې ودریږي نو اللّٰـه تعـالی بـه څـه ورسره وکړي؟! یقینا چې ټول نسل او مرام به یې ختم شي.

مجاهدینو ورونو! دا چې اللّٰه تعالی به مو څـه وخـت ځـان تـه دومـره محبـوب ګرځوي چې زمونږ دښمن ته د جنګ اعلان کوي، نو دا هغه وخت کېدلی شي چې

مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقو باندې مکمل عمل وکړو، چې دا لیکنه په همدې هدف سره لیکل شوې ده چې مجاهد په خپل ژوند کې د رسول الله په طریقو مکمل ځان برابر کړي او له الله تعالی سره خپله رابطه پخه کړي.

راځئ! چې له الله تعالی سره رابطه جوړه کړو! نړدېوالی یې تر لاسه کړو او پخپلو ټولو دښمنانو غلبه تر لاسه کړو. ومن الله توفیق

❊ ❊ ❊

# لومړی باب:

## د جهادي ژوند پیل

۱-: په جهادي ژوند کې نیت او اهمیت یې

۲-: اخلاص او اهمیت یې

## په جهادي ژوند کې نیت او اهمیت یې

زما مجاهده وروره! ته پوهېږې چې اللّه تعالی د خپل دین داسې برخې ته انتخاب کړی یې چې تر ټولو بهترینه ده، تر ټولو ډېر اجرونه یې هم تاته ټاکلي دي، د مسلمانانو په زړونو کې یې هم ستا لپاره محبت اچولی او ستا د مجاهدینو ورونو په منځ کې یې هم هغه محبت پیدا کړی چې د ټولې دنیا په مصرفولو سره هم څوک داسې محبت نشي پیدا کولی. خو؛ ته پوهېږې چې امتحان دې هم همدومره سخت دی، ستا ابدي دښمن (شیطان) هم تر نورو خلکو په تا ډېر کوښښ کوي چې تا خطا باسي، او ستا لومړۍ تېروتنه وروستۍ تېروتنه ده، ځکه؛ تا له مرګ سره اشنایي پیل کړې، چې د خپلې تېروتنې د جبران لپاره بیا دوهم چانس هم نه لرې.

ته ښه پوهېږې چې د هر عمل اجر او عذاب د همغه عمل کوونکي د نیت سره برابر اللّه تعالی ورکوي، هر هغه کار چې د اللّه د رضا په خاطر وي اللّه تعالی پرې اجر ورکوي او هر هغه کار چې د هغه د رضا سره مخالف وي نو بیا پرې اللّه تعالی سزا ورکوي، لکه: له عمر بن الخطاب رضي اللّه عنه څخه چې روایت دی، چې د خطبې پر مهال یې ویل: ما له رسول اللّه صلی اللّه علیه و سلم څخه واورېدل چې ویل یې: عن أمير المؤمنين أبي حفص عمر بن الخطاب رضي الله تعالى عنه قال: سمعت رسول الله صلى الله تعالى عليه وعلى آله وصحبه وسلم يقول: " إنما الأعمال بالنيات، وإنما لكل امرئ ما نوى، فمن كانت هجرته إلى الله ورسوله فهجرته إلى الله ورسوله، ومن كانت هجرته لدنيا يصيبها أو امرأة ينكحها فهجرته إلى ما هاجر إليه".[٣]

[٣] أخرجه البخاري،باب بَدْءُ الوَحْيِ، رقم[١] وأخرجه مسلم في صحيحه،باب قوله صلى الله عليه وسلم: «إنما الأعمال بالنية» ، وأنه يدخل فيه الغزو وغيره من الأعمال،رقم[١٩٠٧]

ژباړه: يقينًا عملونه په نيتونو سره دي (د عمل ثواب په نيت سره ورکول کيږي) د چا چې هجرت د الله او د رسول الله صلى الله عليه و سلم لپاره وي، نو د هغه هجرت د الله تعالى او د رسول الله صلى الله عليه و سلم لپاره دى، او که چا د دنيا لپاره هجرت وکړ چې ورته ورسيږي، او يا يې د يوې ښځې لپاره هجرت وکړ چې واده ورسره وکړي، نو د هغه هجرت د هغه څه لپاره دى چې ورته يې هجرت کړى وي.

زما مجاهده وروره! دا هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم حديث دى چې د هر عمل لپاره يې ښه نيت لازم ګرځولى او د هر عمل اجر يې په نيت پورې تړلى، سره له دې چې دا يو عام حديث دى يعنې هر نېک عمل ته شامل دى خو د جهاد د نيت په باره کې بيا ځانګړي احاديث راغلي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته للهيت لازم ګرځولى، نو د دې لپاره چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا احکام مو اول په خپل ځان عملي کړي وي نو...

راځه! چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا حديث لومړى په ځان عملي کړو:

عَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ قَال: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَرَأَيْتَ رَجُلًا غَزَا يَلْتَمِسُ الْأَجْرَ وَالذِّكْرَ، مَا لَهُ؟ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا شَيْءَ لَهُ. فَأَعَادَهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، يَقُولُ لَهُ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا شَيْءَ لَهُ. ثُمَّ قَالَ: إِنَّ الله لَا يَقْبَلُ مِنَ الْعَمَلِ إِلَّا مَا كَانَ لَهُ خَالِصًا، وَابْتُغِيَ بِهِ وَجْهُه. [٤]

ژباړه: له ابو امامه باهلي رضي الله عنه څخه روايت دى، هغه فرمايي: يو سړى نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته راغى، نو ويې ويل: ماته د هغه کس په اړه خبره وکړه چې غزا کوي، د اجر تمه يې هم وي او د يادېدلو تمه يې هم وي، (يعنې دا چې جهاد ته پدې نيت تللى وي چې الله تعالى اجر ورکړي خو ورسره يې دا تمه

[٤](أخرجه سنن النسائي في باب مَنْ غَزَا يَلْتَمِسُ الْأَجْرَ وَالذِّكْرَ-رقم الحديث: ٤٣٣٣)

هم وي چې په خلکو کې به په شجاعت او جهاد سره ياد شم) نـو دې کـس تـه څـه شی دي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: هغـه لـره هـېڅ (اجـر) نشـته. دې سړي خپله پوښتنه درې ځله تکرار کړه، هر ځل بـه رسـول اللّـه صـلی اللّـه علیـه وسلم ورته فرمايل: لاشئ له، بیا یې وفرمایل: یقینًا الله تعالی صرف هغه اعمال قبلوي چې خالص د هغه جل جلالـه لپـاره شـوي وي، او پـه کـــولو سره یـې د هغـه رضـا هدف وي.

د دې حدیث په رڼا کې باید هر مجاهد ځان وگوري، هسې نه چې د دې دنیـا تکلیفونه او کړاوونه مو په ځان منلي وي، خو بیا مو هم د الله تعالی رضا تـه ځـان نـه وي رسولی. الله تعالی یواځې هغه اعمال قبلوي چې خـاص د اللّـه عزوجـل د رضـا لپاره تر سره شوي وي.

محترمو مجاهدينو! که د الله تعالی کلام په تدبر او فکر سره وگورو نو وبه وينو چې الله تعالی چې په کومو ځایونو کې د جهاد او قتال امر کړی نو د في سـبیل اللـه قید یې غالبا ورسره لگولی چې کابو تر شلو ځایونو څخه هم ډېر د في سبیل الله قید ذکر شوی، د في سبیل الله معنا همدا ده چې په جهاد کولو کې مـو هـدف صرف او صرف د الله تعالی رضا وي.

که په جهاد کې د یو مجاهد نیت خاص د الله د رضا په خاطر نه وي نو بیا؟!

دا هغه خبره ده چې هر مجاهد باید ځان پرې وپوهوي چې کـه خـدای مکـړه په خپل نیت باندې کوشش ونه کړو او خاص یې د الله د رضا په خاطر ونه گرځـوو، نو انجام به مو دا وي لکه په لاندې حدیث کې چې رسول الله صلی الله علیه وسـلم کوم وعید یاد کړی، العیاذ باالله:

عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ أَوَّلَ النَّاسِ يُقْضَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَيْهِ رَجُلٌ اسْتُشْهِدَ، فَأُتِيَ بِهِ، فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ، فَعَرَفَهَـا، قَالَ: فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا؟ قَال: قَاتَلْتُ فِيكَ حَـتَّى اسْتُشْـهِدْتُ. قَـالَ: كَـذَبْتَ، وَلَكِنَّـكَ

قَاتَلْتَ لِأَنْ يُقَالَ: جَرِيءٌ، فَقَدْ قِيلَ. ثُمَّ أُمِرَ بِهِ، فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ، حَتَّى أُلْقِيَ فِي النَّارِ، وَرَجُلٌ تَعَلَّمَ الْعِلْمَ، وَعَلَّمَهُ، وَقَرَأَ الْقُرْآنَ، فَأُتِيَ بِهِ، فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ، فَعَرَفَهَا، قَالَ: فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا؟ قَالَ: تَعَلَّمْتُ الْعِلْمَ، وَعَلَّمْتُهُ، وَقَرَأْتُ فِيكَ الْقُرْآنَ. قَالَ: كَذَبْتَ، وَلَكِنَّكَ تَعَلَّمْتَ الْعِلْمَ لِيُقَالَ: عَالِمٌ، وَقَرَأْتَ الْقُرْآنَ لِيُقَالَ: هُوَ قَارِئٌ، فَقَدْ قِيلَ. ثُمَّ أُمِرَ بِهِ، فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ حَتَّى أُلْقِيَ فِي النَّارِ، وَرَجُلٌ وَسَّعَ الله عَلَيْهِ، وَأَعْطَاهُ مِنْ أَصْنَافِ الْمَالِ كُلِّهِ، فَأُتِيَ بِهِ، فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ، فَعَرَفَهَا، قَالَ: فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا؟ قَالَ: مَا تَرَكْتُ مِنْ سَبِيلٍ تُحِبُّ أَنْ يُنْفَقَ فِيهَا إِلَّا أَنْفَقْتُ فِيهَا لَكَ. قَالَ: كَذَبْتَ، وَلَكِنَّكَ فَعَلْتَ لِيُقَالَ: هُوَ جَوَادٌ، فَقَدْ قِيلَ. ثُمَّ أُمِرَ بِهِ، فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ، ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّارِ [۵]

ژباړه: له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی، چې فرمایي: ما له رسول الله صلی الله علیه و سلم څخه واورېدل چې ویل یې: یقینًا هغه لومړنی کس چې د محشر په ورځ پرې فیصله کیږي، هغه به داسې کس وي چې شهید کړل شوی وی. هغه به راوستل شي، په هغه باندې شوي نعمتونه به وریاد کړي، هغه به یې هم وپېژني (وریاد به شي) وبه وایي (الله تعالی به وفرمایي) نو تا پدې نعمتونو کې کوم عمل کړی؟ (شهید) به ووایي: ستا په لاره کې وجنګېدم، تر څو چې شهید شوم. الله تعالی به وفرمایي: دروغ دې وویل: تا خو د دې لپاره قتال کاوه چې زړور درته وویل شي، او هغه خو درته وویل شول. بیا به د ده په هکله امر وکړل شي، پړمخې به راکش کړل شي، تر څو چې اور ته واچول شي. او هغه سړی (چې لومړی فیصله به پرې کیږي) چې علم یې زده کړی وي، او قرآن یې لوستلی وي، هغه به راوستل شي، په هغه باندې شوي نعمتونه به وریاد کړي، هغه به یې هم وپېژني (وریاد به شي) وبه وایي (الله تعالی به وفرمایي) نو تا پدې نعمتونو کې کوم عمل کړی؟ هغه به ووایي: علم مې زده کړی او بل ته مې ښودلی، او ستا لپاره مې قرآن لوستلی، الله تعالی به وفرمایي: دروغ دې وویل: تا علم د دې لپاره زده کړی وو چې عالم درته

[۵] (صحیح مسلم بَابُ مَنْ قَاتَلَ لِلرِّيَاءِ وَالسُّمْعَةِ اسْتَحَقَّ النَّارَ/رقم الحدیث: ۱۹۰۵)

وویل شي، او قرآن دې لوستلی وو د دې لپاره چې وویل شي چې هغه قاري دی، هغه درته ویل شوي. بیا به د ده په هکله امر وکړل شي، پړمخې به راکش کړل شي، تر څو چې اور ته واچول شي.

او هغه سړی (چې لومړی فیصله پرې کیږي) هغه دی چې الله تعالی پراخوالی پرې راوستلی وي، او هر قسم مال یې ورکړی وي، هغه به راوستل شي، په هغه باندې شوي نعمتونه به وریاد کړي، هغه به یې هم وپېژني (وریاد به شي) وبه وایي (الله تعالی به وفرمایي) نو تا پدې نعمتونو کې کوم عمل کړی؟ هغه به ووایي: داسې یوه لار مې هم نده پرېښې چې ستا خوښه وه چې مصرف دې پکې وشي، خو ما دې مصرف پکې کړی نه وي. یعني ستا د خوښې په لارو کې مې مال مصرف کړی دی. الله تعالی به وفرمایي: دروغ دې وویل: تا د دې لپاره دا کار کاوه چې سخي درته وویل شي، هغه درته ویل شوي. بیا به د ده په هکله امر وکړل شي، پړمخې به راکش کړل شي، تر څو چې اور ته واچول شي.

که د دې حدیث په اړه لږ غور وشي نو دا ترې څرګندیږي چې که څه هم په دنیا کې یو چا ته شهید وویل شي، خو چې نیت یې خاص د الله د رضا په خاطر نه وي، نو الله تعالی یې هېڅکله نه قبلوي، بلکې لا پرې عذاب ورکوي او دا به ورته په جهنم کې هم پیغور ګرځي. که چېرته د الله رضا غوښتل خپل اساسي هدف وګرځول شي او په عمل کې هم دا ثابته کړل شي چې ما هر څه د الله لپاره کول، چې په عمل کې یې ثابتول دا معنا لري چې خپل هر کار د شرعي احکامو سره سم پر مخ یوړل شي؛ ځکه که چېرته مونږ سل ځله هم ووایو چې زه دا کار د الله د رضا په خاطر کوم خو د الله تعالی د احکامو خیال مو نه وي ساتلی، نو هېڅکله یې الله تعالی نه مني، بلکې انجام به مو هغه وي چې په پورته حدیث کې ذکر کړل شو.

که څه هم د عملي کولو او په خپل نیت باندې د کار کولو لپاره پورته احادیث پوره بسنه کوي، خو د لا وضاحت په خاطر باید هغه احادیث هم ذکر کړم چې په څو څو ځله رسول الله صلی الله علیه وسلم د جهاد د نیت د وضاحت لپاره یو

ځواب ور کړی لکه: لـه ابوموسـی اشـعري رضي اللّٰـه عنـه څخـه روايـت دی، هغـه فرمايي: له رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه و سلم څخه پوښـتنه وشـوه: عَـنِ الرَّجُـلِ يُقَاتِـلُ شَجَاعَةً، وَيُقَاتِلُ حَمِيَّةً، وَيُقَاتِلُ رِيَاءً، أَيُّ ذَلِكَ فِي سَبِيلِ الله؟ فَقَالَ رَسُولُ الله صَـلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ الله هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ الله. [٦]

يعنې: (له رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه و سلم څخه پوښتنه وشوه) د داسې کس په هکله چې هغه د شجاعت له امله جنګيـږي، او د حميـت (جـاهلي غيـرت) لـه املـه جګړه کوي، او يا هم د رياء (ځان ښوونې) له امله جنګيږي، دوی کې کوم يو د اللّٰه په لاره کې دی؟ رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه و سلم وفرمايل: چا چې د دې لپـاره قتـال وکړ چې د اللّٰه کلمه لوړه شي، همدغه کس د اللّٰه پـه لاره کـې جهـاد کـوونکی بلـل کيږي.

همدا راز د رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه وسلم هغه حديث چې ابـن مسـعود رضي اللّٰه عنه له رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه وسلم څخه روايت کوي چـې: أَنَّـهُ ذُكِـرَ عِنْـدَهُ الشُّهَدَاءَ، فَقَالَ: إِنَّ أَكْثَرَ شُهَدَاءِ أُمَّتِي أَصْحَابُ الْفُرُشِ، وَرُبَّ قَتِيـلٍ بَـيْنَ الصَّـفَّيْنِ الله أَعْلَمُ بِنِيَّتِه.[٧]

ژباړه: د هغه صلی اللّٰه عليه و سلم په مخکې شهيدان ياد شـول، نـو هغـه صـلی اللّٰه عليه و سلم وفرمايل: يقينًا زما د امت اکـثره شـهيدان د بسـتر والا دي (هغـه چـې پخپل مرګ وفات شوي وي) او ډېر کله يو وژل شوی کس د دوو صـفونو تـر مـنځ، خو؛ اللّٰه تعالی يې په نيت عالم دی.

پورته نبوي لارښوونو تـه پـه کتلـو سره ويلـی شـو چـې د مجاهـد لپـاره د نيـت سموالی داسې مهم دی لکه د انسان د ژوند لپاره د هغه روح چې څـومره مهـم دی، نو د همدې لپاره بايد لومړی په خپلو نيتونو او بيا د خپلو مجاهدو ملګـرو پـه نيتونـو

[٦](أخرجه مسلم في الإمارة باب من قاتل لتكون كلمة الله هي العليا رقم ١٩٠۴)

[٧](مسند أحمد باب مسند عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه/ رقم الحديث: ٣٧٧٢)

کوشش وکړو چې خاص د الله د رضا په خـاطر وي، تـر څـو د اللّـه جـل جلالـه پـه دربار کې په هسکه غاړه ودرېدلی شو.

مجاهده وروره! دا خو ځرګنده خبره ده چې کله ته جهـادي صـف تـه راوتلـی یې نو نیت دې د الله تعالی رضا ده؛ خو بیا هم د خپل ځان، د خپلو ملګـرو، افـرادو، مخلصینو او خپلوانو په نیتونو باندې هم کوښښ وکـړه! چـې لـه تـا سره د وېـرې یـا خپلوۍ او یا هم رقابت له امله مرسته ونه کړي، بلکې خاص د لـوی رب لپـاره لـه تـا سره مرسته وکړي. تر څو د محشر په ورځ د مجاهدینو په صف کې په هسکو سترګو ولاړ واوسې.

اللّهم ارزقنا حسن النیة کما امرتنا

* * *

# اخلاص او اهمیت یې

اخلاص او للهیت د بنده او د هغه د رب تر منځ هغه راز دی چې تر خالق پرته بل چا ته نه معلومیږي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وینا سره سم اللّه تعالی زمونږ شکلونو او جسمونو ته نه ګوري، بلکې زمونږ زړونو ته ګوري او د یو بنده په زړه باندې پوره پوهېدل صرف او صرف د اللّه تعالی په وس پوره ده. له همدې امله کله چې مونږ د اللّه تعالی لپاره د جهاد في سبیل الله مرکز ته درومو، او له خپل رب سره د سرونو نذرانې ته تیاریږو، نو باید ډېر محتاط واوسو، خدای مکړه هسې نه چې په اخلاص کې مو کمښت راغلی وي، چې بیا به مو نه خپل رب راضي کړی وي او نه به مو هم ځان هوسا کړی وي.

همدا راز په هر نیک عمل او په تېره بیا جهادي اعمالو کې اخلاص ځکه هم مهم دی چې اللّه تعالی فرمایي: **لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلاً** (ملک/۲) ژباړه: « لپاره د دې چې هغه (اللّه تعالی) وازمایې تاسي چې کوم یو له تاسي ډېر ښه دی د عمل له مخې (چې درکړي تاسي ته جزاء د اعمالو».

د دې آیت په تفسیر کې فضیل بن عیاض رحمه الله فرمایي: أَخْلَصَهُ وَ أَصْوَبَهُ (یعنې له أَحْسَنُ عَمَلاً څخه أَخْلَصُ او أَصْوَبُ مراد دی) پوښتنه ترې کېږي چې أَخْلَص او أَصْوَب څه مطلب؟ فرمایي: کله چې عمل خاص د اللّه لپاره کېږي خو صواب نه وي دا هم نه قبلیږي او که عمل صواب وي خو خاص د اللّه لپاره نه وي بیا هم نه قبلیږي، تر څو چې عمل خاص د اللّه لپاره او صواب نه وي، نه قبلیږي، نو خالص هغه عمل دی چې خاص د اللّه لپاره وي او صواب هغه عمل دی چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه باندې وي (تفسیر السعدي)

د فضیل ابن عیاض رحمة الله علیه د وینا سره سم که چېرته مونږ غواړو چې الله تعالی مو عمل قبول کړي نو باید چې عمل مو هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه باندې برابر وي او هم خاص د الله د رضا لپاره وي.

ابو عثمان رحمه الله فرمایي چې: اَلْاِخْلَاصُ: نِسْیَانُ رُؤْیَةِ الْخَلْقِ بِدَوَامِ النَّظَرِ إِلَی الْخَالِقِ. یعنې: اخلاص دې ته وایي چې: د خالق د نظر د دوام له امله د مخلوق لیدل هېر کړل شي (شرح المهذب للنووي)

کله چې انسان یو نېک عمل کوي او پدې سره یې اراده د الله تعالی رضا وي نو دېته اخلاص وایي او که همدغه نېک عمل کولو کې کوم بل لامل پیدا شو لکه: ځان ښوونه، د خلکو د صفت تمه، او یا هم د خلکو د عطاء او مال تمه کول، نو له دې سره دا عمل د اخلاص په ضد کې واقع کیږي چې الله تعالی یې نه مني، او د همدې ځان ښوونکو بد الله تعالی په خپل قرآن کې بیان کړي دي: **فَوَيْلٌ لِلْمُصَلِّينَ، الَّذِينَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ، الَّذِينَ هُمْ يُرَاؤُونَ.** (ماعون/٦٥) ترجمه: «پس هلاک افسوس کنده د دوزخ یا خرابي ده د پاره د لمونځ کوونکو، هغه کسان چې دوی له لمانځه خپله غافله بې خبره وي (پخپلو اوقاتو او ادابو سره یې نه اداء کوي) هغه کسان چې دوی ریاء کاري کوي (په خپل عمل کې، ښوونه کوي خلکو ته)».

او همدا راز ریاء او ځان ښوونه یې د منفافقینو په صفاتو کې بیان کړې ده:

**وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَى، يُرَاءُونَ النَّاسَ...** (النساء/١٤٢) ژباړه: «او هر کله چې پاڅیږي دغه (منافقان) لمانځه ته نو پاڅیږي سست کاهلان، ښیي دوی خلکو ته (ځان خپل چې موږ هم مسلمانان یو) او نه یادوي دوی الله مګر (ریایي یادول) لږ».

همدا راز په کوم عمل کې چې د الله تعالی د رضا پرته د بل چا رضا هم په پام کې نیول شوي وي نو هغه عمل الله تعالی نه قبلوي، لکه د ابوهریره رضي الله عنه په روایت کې چې راځي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي چې الله تعالی

فرمايلي: أَنَا أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنْ الشِّرْكِ، مَنْ عَمِلَ عَمَلًا أَشْرَكَ مَعِيَ فِيْـهِ غَـيْرِيْ تَرَكْتُـهُ وَشِرْكَهُ (۸) (الله تعالى فرمايي: زه د شريکانو څخه ښه غني يم له شرک څخه، چا چې يو عمل وکړ او په هغه کې يې له ما سره کوم بل کس شريک کړ نو زه يې پرېږدم له همغه شرک سره)

خو يوه مهمه خبره دا چې: مونږ ټول دعوه کوو چې زه خپل هر عمل د الله لپاره په اخلاص سره کوم او بل هدف پکې نه لرم، د دې لپاره چې پخپلو اعمالو کې ځان ته معلومات وکړو چې آيا دا مې په اخلاص سره کړي دی کنه؟ نو بايد په ځان کې د اخلاص علامې ولټوو:

علامه ذوالنون مصري رحمة الله عليه فرمايي: ثلاثة من علامات الاخلاص: استواء المدح والذم من العامة، نسيان رؤية الاعمال في الاعمال، اقتضاء ثواب العمل في الآخرة (شرح المهذب للنووي)

هغه فرمايي: د اخلاص درې علامې دي: لومړی: د خلکو له خوا مدح او ذم يعنې ښه ويل او بد ويل برابرېدل، دوهمه: د اعمالو په کولو کې د اعمالو ليدل هېرول (يعنې: بلکل دا هېرول چې کوم بنده راته گوري کنه؟!). دريمه: د هر عمل د ثواب تمه په آخرت کې لرل.

د دې علامو د بيان سره سم مونږ خپل هر عمل په همدې تله تللی شو چې آيا دا کار ما خاص د الله لپاره په اخلاص سره کړی دی کنه؟ ځکه: که چېرته داسې وي چې امير مو د خدمت ستاينه کوي، او شاباسی راکوي او له دې سره زما په عمل کې زياتوالی راځي، خو که هغه ځان پوه نکړي بيا نو ځان سره وايم چې دا داسې خلک دي چې زه ورته خدمت وکړم دوی ته هېڅ معنا نه لري، بيا نو دا عمل کله د الله لپاره دی؟

(۸)(أخرجه مسلم في بَابُ مَنْ أَشْرَكَ فِي عَمَلِهِ غَيْرَ اللهِ، رقم الحديث: ۲۹۸۵)

یا داسې چې کله کوم مشر یا امیر او یا هم ملګري راتـه ګـوري زه کـار ښـه پـه دقت سره کوم خو چې کله هغوی نه وي بیا یې په دقـت سره نـه کـوم او ځـان ترېنـه خلاصوم. نو دا کله اخلاص شو؟

که چېرته کوم کس پدې هلاکوونکي مرض کې مبتلا شو، او د نېک عمـل پـه کولو کې یې پورته للهیت نشو کولی، نو د هغه لپـاره اړینـه ده چـې د دې مـرض پـه دواوو باندې عمل وکړي، یعنې: هغه اعمال تر سره کړي چې علماء کرامو د اخلاص د تر لاسه کولو لپاره په ګوته کړي دي. چې تر ټولو مهم پکې دوه خبرې دي:

۱-: د خلکو لخوا د ثناء او عطاء څخه ځان بې پروا کول.

۲-: په ځان باندې دا کوښښ کول چې هر عمل پټ وکړل شي.

لکه: علامه ابن قیم رحمه الله په الفوائـد کـې فرمـایي: د یـو بنـده پـه زړه کـې اخلاص او د خلکو د ثناء محبت او د هغوی عطاء ته تمه لرل نه یوځای کېږي، مګر په داسې شکل سره یو ځای کیږي لکه د اوبو او اور یو ځـای کېـدل. همـدا راز ابـن قیم رحمه الله فرمایي: کله چې د اخلاص عزم وکړې نو باید اول طمع راواخلـې او د خلکو په چړې یې حلاله کړې! او د خلکو له مدحې او ثنـاء سره داسـې بـې رغبتـي وکړه، لکه د عشاقو بې رغبتي! نو کله دې چې طمع ذبحـه کـړه او د خلکـو لـه ثنـاء څخه بې رغبته شوې نو بیا به درته اخلاص آسانه شي. او که ته ووایې چې د طمعې ذبحه څنګه راته آسانه شي؟! نـو بایـد ووایـو چـې: د طمعـې ذبحـه پـدې سره درتـه آسانیږي چې پدې باندې یقین جوړ شي چې له الله تعالی سره داسي بېسـاري پـوره او ډکې خزانې دي چې له الله تعالی پرته یې بل څـوک واک نـه لـري او اللّـه تعـالی خپل بنده ته چې څومره شی ورکوي له دې څخه ډېر او ښه هېڅوک نشي ورکـولی. او له خلکو څخه د ثناء بې رغبتي پدې سره درته آسـانیږي چـې پـدې بانـدې ځـان یقیني کړې چې د هېڅا مدح او بد ویل درته ګټه او ضرر نشي رسولی، مګر دا چـې د الله په وړاندې ځان د مدحې او یا هم د ذم وړ وګرځوې.

لنډه دا چې که چېرته د عمل په کولو کې د اللّٰه تعالی څخه پرته د بل شي باعث هم وي نو دا اخلاص نه دی، اللّٰه تعالی یې نه قبلوي او د ثواب په ځای ورته عذاب ورکوي، خو که چېرته یې یو عمل خاص د اللّٰه لپاره او د اللّٰه تعالی د محبت له امله کړی وو خو خلکو یې له امله صفت کاوه، نو دا د رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم د وینا سره سم: « د مؤمن لپاره لومړی زېری دی » پدې باندې د عمل ثواب نه ختميږي، بلکې اللّٰه تعالی صرف یو زېری ورکړ.

مجاهدینو ورونو! که غواړو چې اللّٰه تعالی ته ځان نږدې کړو نو باید هر عمل اللّٰه تعالی ته په اخلاص سره وکړو! د اخلاص علامې په ځان کې راولو، او اللّٰه تعالی ته پوره للهیت ثابت کړو.

* * *

# دوهم باب:

# جهاد او جهادي احکام

۱-: د جهاد تعريف

۲-: د جهاد مراحل

۳-: د جهاد في سبيل الله حکم

۴-: د جهاد في سبيل الله فضائل

۵-: د جهاد د پرېښودلو الهي او نبوي وعيدونه

٦-: د جهاد لپاره اعداد او تياری

۷-: له شهادت سره محبت او فضائل يې

۸-: د الله تعالی لخوا مجاهدينو سره د نصرت اسباب

۹-: د جهاد په لار کې مصرف کول

۱۰-: مجاهدينو ته درې نبوي لارښوونې

# جهاد في سبيل الله (د الله په لاره کې جهاد کول)

د اسلام سپېڅلی دين مؤمنانو ته په غيرت سره رارسېدلی. رب مو غيرتي دی، پيغمبر مو غيرتي دی، دين مو غيرتي دی او بايد لاروي يې هم د غيرت لاروي وي.

د اسلامي دعوت په مخکې د خنډ اچونکو سره مقابله کول په خپل دين باندې غيرت دی، زمونږ اسلامي حريم باندې يرغل کوونکو ته د سر په کاسه کې اوبه ورکول غيرت دی، او په ټوله ځمکه باندې د الله د دين حاکمول ديني غيرت دی. که څوک د الله په لاره مزل غواړي هغه د غيرت لاره ده، که څوک د رسول الله صلی الله عليه و سلم په قدم باندې قدم ږدي هغه د غيرت قدم دی، په بې غيرتی سره هېڅ کله دين نه ګټل کيږي.

د اسلامي امت لومړنيو چې په خپل دين باندې د غيرت صفت درلود، د الله تعالی د دين په مقابل کې د درېدونکو طاغوتانو لپاره يې توري تېرې وې، او خپل دين ورته تر هر څه زيات ارزښت درلود؛ متعال رب هم لومړنيو ته تر ټولې نړۍ زيات عزت ورکړی وو.

زمونږ قادر رب مونږ پيدا کړي يو، او زمونږ ټول خواص تر مونږ هم ښه ورمعلوم دي، الله تعالی پخپل کلام کې فرمايي: **كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ** الايه. (البقره۲۱٦) يعنې: «فرض کړل شوی دی پر تاسي باندې جنګ کول (له کفارو سره) حال داچې دغه (جنګ) بد ښکاري تاسي ته».

الله تعالی ته دا معلومه وه چې پدې امت کې به هم داسې کسان وي چې هغوی جهاد في سبيل الله ته په ښه سترګه نه ګوري، پخپله خو يې نشي کولی بلکې د نورو پښې هم وهي او د خپل ځان د خلاصولو لپاره به قرآني آيتونه هم تحريفوي. ځکه خو يې په وضاحت سره وفرمايل چې قتال درباندې فرض دی که څه هم تاسو يې نه خوښوئ!

زه نن د اسلامي امت هر فرد ته په بېل بېل وضاحت سره خبره کوم. که عـالم او طالب دی پدې قرآني آيتونو دې فکر وکړي او ځـان دې د هغـو علـماوو لـه ډولي څخه وژغوري چې د رسول اللّٰه صـلی اللّٰـه عليـه و سـلم د حـديث سره سـم بـه اول جهنم ته غورځول کيږي. که عام مؤمن او مسلمان دی له ځان سره دې فکـر وکـړي چې له ماشومتوب راهيسې زه لمونځ فرض ګڼم که نن راته سلګونه علماء هـم راشي چې دا لمونځ فرض نه دی زه يې هېڅکله ورسره نه منم او دا لمونځ نه پرېږدم، همدا راز نن زه د اللّٰه د کلام او د رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه و سلم په احـاديثو سره دا پيغـام در رسول غواړم چې په اوسني وخت کې په تـا بانـدې جهـاد فـرض عـين دی او نـه کول يې داسې دي لکه د فرض لمانځه نه کـول، لـه ځـان سره فکـر وکـړه! هـر هغـه څوک چې تا نن له جهاد څخه پاتې کوي په قـبر کـې هېڅکلـه ســتا ملاتـړ نـه شي کولی او د اللّٰه تعالی له عذاب څخه دې نشي خلاصولی، نو همـدا نـن عـــزم وکـړه او نور د جهادي صف ملګرتيا غوره کړه!

همدا راز هر مؤمن ته په خطاب کې وايـم: که ځان ته هر عذر لټوې خـو نـن د اللّٰه تعالی او د رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه و سلم د لارښوونو پـه رڼـا کـې زمـا دا پيغـام پدې نيت وګوره چې نور به ځان ته عذر نه لټوم، د عمل په موخه به يې ګورم او نور به جهاد في سبيل اللّٰه پيل کوم.

* * *

# د جهاد تعریف

جهاد په لغت کې: جهاد له جَهد او له جُهد دواړو څخه اخیستل کېدلی شي چې د جیم په فتحې سره مشقت ته او د جیم په ضمې سره طاقت او قدرت ته ویل کیږي.

جهاد په اصطلاح کې: (بَذْلُ الْوُسْعِ وَالطَّاقَةِ فِيْ قِتَالِ الْكُفَّارِ في سبيل الله عزّ وجلّ؛ بالنفس والمال واللسان أو غير ذلك). یعنې: د کفارو په وژلو کې خپل قوت استعمالول.

د جهاد په تعریف کې یو مهم ټکی د قتال دی، پدې معنا سره چې که مونږ د جهاد في سبیل الله تعریف کوو، نو د قتال لفظ به خامخا پکې وي، د قتال له لفظ پرته د جهاد تعریف نشي پوره کېدلی. د امت لومړني علماء په کامله توګه پدې اتفاق لري چې د جهاد په تعریف کې قتال حتمي دی. همدا راز د رسول الله صلی الله علیه و سلم په حدیث کې هم جنګ او قتال ته جهاد ویل شوی. او د رسول الله صلی الله علیه وسلم جهادي ژوند هم په قتال بناء دی.

هغه کسان چې د ځان د خلاصون له امله د جهاد د لفظي تعریف څخه اخذ کوي او د جهاد في سبیل الله حکم کې تغیر راولي باید د الله تعالی څخه ووېرېږي، د ټول امت له متقدمینو علماوو څخه په کومو سترګو انحراف اختیاروي؟ آیا دوی دا فکر نه کوي چې د (وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ) یعنې: «او تابع شي (لاړ شي) بې له لارې د مؤمنانو». په حکم کې به راشي او آیا هغوی له (نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ الایه. (النساء ۱۱۵) ترجمه: «نو وبه ګرځوو موږ دی هغه لوري ته چې دی ورګرځیدلی دی او داخل به کړو موږ دی جهنم (دوزخ) ته او بد ځای د ورتلو دی (دا دوزخ)». څخه نه وېرېږي؟!

# د جهاد مراحل

د الله تبارک و تعالی له لوري د ډېرو احکـامو رالېږل تـدريجي شـکل درلـود: لکه شرابو ته په لومړي ځل الله تعالی يواځې نجس وويل، په دوهم ځل يـې خلـک د نشې په حالت کې لمانځه ته له نږدې کېدلو څخه منع کړل او په دريم ځل يـې پـه کامله معناخلک له شرابو څخه منع کړل. د الله تعالی احکام هېڅکله په شا نـه ځـي، يعنې هغه حکم چې اول ځل راغلی دوهم حکم د هغه لپاره ناسخ دی.

په همدې توګه د جهاد في سبيل الله حکم هم په دريو مرحلو کې نازل شوی:

**لومړی مرحله: يواځې اجازه**

د جهاد في سبيل الله په اړه د الله تعالی لومړی حکم يواځې هغـو خلکـو تـه د اجازې وو چې له هغوی سره قتال کيږي ځکـه چـې هغـوی سره ظلـم روان وو، اللّـه تعالی فرمايي: أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ (الحج/۳۹)

ژباړه: «حکم ورکړی شوی دی (د قتال) هغو کسانو ته چـې قتـال ورسره کـول کيږي (د کفارو له خوا) په دې سبب چې بېشکه پـه دوی ظلـم شـوی دی او بېشـکه چې الله په مرسته د دوی خامخا قارد دی».

اجازه د قتال ورکول شوې ده هغو کسانو ته چې جهاد کوي لـه مشرکينو سره، بېشکه دا هغه کسان دي چې ظلم پرې شـوي دی (د مشرکانو لخـوا) او بېشـکه اللّـه تعالی د دوی سره په مرسته کولو ښه قادر دی.

**دوهمه مرحله: د قتال کوونکو سره جګړه کول او د قتال نـه کوونکـو سره جنګ نه کول:**

دوهم حکم د هغو کسانو سره جګړه کول و، چې قتال کوي، خو کوم کسان چې د مؤمنانو پر خلاف په جنګ کې برخه نه اخلي له هغوی سره د جګړې اجازه

نه وه. الله تعالی فرمايي: وَقَاتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللّه الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ وَلاَ تَعْتَدُواْ إِنَّ اللّه لاَ يُحِبِّ الْمُعْتَدِين (البقرة/۱۹) ژباړه: «او جنګ کوئ (ای مؤمنانو) په لاره د الله کې له هغو کسانو سره چې جنګ کوي له تاسي سره او مه کوئ زيادت (پر هيڅاه باندې (ای مؤمنانو) بېشکه چې الله نه خوښوي تېريدونکي له حده».

**دريمه مرحله: د ټولو کفارو سره جګړه کول.**

د اجازې او د قتال کوونکو له وژلو وروسته د الله تعالی لخوا داسې امر وشو چې: وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لاَ تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلّه (الانفال/۳۹)

يعنې: «او وجنګيږئ (ای مؤمنانو) له دغو «کفارو» سره تر هغه پوري چې نشي پاته فتنه «فساد په ځمکه کې» او شي دين «حکم» ټول خاص اللّـه لره (او نور ټول باطل اديان ورک شي)».

له دې حکم څخه وروسته هغه احکام منسوخ شول چې غير قتال کوونکي به نه وژل کيږي. بلکې د غير عربي کفارو لپاره درې اختيارات ول: ۱- اسلام راوړل ۲- جزيه ورکول ۳- قتال. له دې پرته بل هيڅ اختيار ورته نه وو، او که اوس يو څوک د لومړۍ او يا دوهمې مرحلې احکام او قصص را اخلي او په اوسني وخت يې تطبيقوي دا يوه ستره ګمراهي ده، او داسې ظلم کوونکو ته الله هدايت نه کوي.

* * *

# د جهاد في سبيل الله حکم

د الله تعالی په لاره کې جهاد کول د الله تعالی لخوا فرض شوی حکم دی، الله تعالی فرمايي: کُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ وَعَسَى أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَعَسَى أَن تُحِبُّوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ وَاللهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ. (البقره ٢١٦) ژباړه: «فرض کړل شوی دی پر تاسي باندې جنگ کول (له کفارو سره) حال داچې دغه (جنگ) بد ښکاري تاسي ته، او ښايي چې بد گڼئ تاسي يو شی حال داچې هغه ډير بهتر وي تاسي لره، او ښايي چې ښه وگڼئ تاسي يو شی حال داچې هغه به ډير بد وي تاسي ته او الله عالم دی (په خير ستاسي) او تاسي نه پوهيږئ (په خير خپل)».

په ذکر شوي آيت کې الله تعالی د جهاد فرض کېدل په هغو ټکو بيان کړی دی چې په کومو ټکو يې د روژې فرضيت بيان کړی دی، لکه د روژې په هکله الله تعالی فرمايي: کُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ او د جهاد في سبيل الله په اړه فرمايي چې: کُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَال دواړه احکام د الله تعالی لخوا راغلي، او دواړه په يوه لفظ فرض شوي، خو عجيبه دا ده چې روژه فرض گڼو او عملي کوو يې، خو جهاد ته بيا بهانې لټوو.

له پورته ذکر شوي آيت څخه څرگنديږي چې جهاد په مطلق ډول فرض دی، بيا يې فرضيت په دوه ډوله دی.

١- فرض عين ٢- فرض کفايي

لکه څرنگه چې معلومه ده فرض عين هغه حکم ته ويل کيږي چې د اسلامي ټولنې هر فرد ته په خاصه توگه راجع وي لکه لمونځ. د لمانځه حکم هر بالغ او عاقل مؤمن ته راجع دی، که يې په ولاړه نشي کولی په ناسته به يې کوي، که يې په

ناسته نشي کولی په ملاسته به يې کوي خو د پرېښودلو اجازه يې نشته. که مور او پلار اجازه ورکوي او که يې نه ورکوي لمونځ په هر مؤمن فرض دی او خامخا به يې کوي.

خو فرض کفايي بيا هغه حکم ته ويل کيږي چې ځينې مؤمنان يې وکړي نو د نورو غاړې هم پرې خلاصيږي. لکه د جنازې لمونځ چې لس کسان هم د يوه مړي جنازه وکړي د ټول امت د مؤمنانو غاړې خلاصيږي.

همدا راز جهاد في سبيل الله هم په ځينو حالاتو کې فرض کفايي او په ځينو کې فرض عين وي.

## د جهاد د حکم لومړی حالت: فرض کفايي جهاد

تعرضي جهاد فرض کفايي دی، که امير په يو څه وخت کې يو وړوکی ټولی هم وليږي د ټولو غاړه خلاصيږي. اجر د مجاهدينو ډېر دی خو ناست خلک ګنهګار نه دي. لکه الله تعالی چې فرمايي:

لاَّ يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُوْلِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فَضَّلَ اللهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً وَكُلاًّ وَعَدَ اللهُ الْحُسْنَى وَفَضَّلَ اللهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا. (النساء ۹۵)

ژباړه: «نه دي برابر (الله ته) کيناستونکی (په کور کې) له مؤمنانو نه (له جهاده) بې له خاوندانو د عذره او جهاد کوونکي په لاره د الله کې (د دين د ترقۍ لپاره) په مالونو خپلو سره او په ځانونو خپلو سره، فضيلت ورکړی دی الله جهاد کوونکو ته په (لګولو د) مالونو خپلو سره او (په جارولو د) ځانونو خپلو سره پر کيناستونکو باندې (له معذرته) په درجه کې، او له ټولو سره (که مجاهد وي او که معذور ناست) وعده کړې ده الله د ښې جزاء (جنت)، او فضيلت ورکړی دی الله جهاد کوونکو ته پر کيناستونکو (له معذرته) په اجر عظيم ډير لوی سره».

له ذکر شوي آیت څخه په ډاګه څرګندیږي چې د مجاهدینو اجر ډېر دی، خو له ټولو سره الله تعالی د نېکۍ وعده کړې. یاد حالت د فرض کفایي دی. رښتیا هم د طلب جهاد کې ناست خلک نه ګنهګاریږي، رښتیا هم د طلب د جهاد لپاره قوت راټولول لازم دي او د قوت تر پیدا کېدلو وړاندې به جهاد ته نه ځې، رښتیا هم د طلب جهاد کې د یو امیر شتون ضرور دی. خو؛ دا هر څه د فرض کفایي او د طلب د جهاد دي، او د فرض عین احکام بیا ترې بېل دي.

## د جهاد د حکم دوهم حالت: فرض عین جهاد

جهاد في سبیل الله په دریو حالاتو کې فرض عین کیږي:

- **کله چې دښمن سره په عملي جنګ کې واقع شې!**

په فرض کفایي جهاد کې هم د جنګ له میدان څخه تېښته حرامه ده. او په هغه حالت کې فرض عین ګرځي. الله تعالی فرمایي: **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا زَحْفاً فَلاَ تُوَلُّوهُمُ الأَدْبَارَ.** (الانفال ۱۵)

ژباړه: «ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی« یعني ای مؤمنانو » کله چې یو ځای شئ تاسي (یا مخامخ شئ یا پیښ شئ په جنګ کې) هغو کسانو سره چې کافران شوي دي« د جنګ په ډګر کې » په دغه حال کې چې دوی غونډ (او ګڼ) وي نو مه ګرځوئ تاسي دغو (کفارو) ته شاوي خپلې« د تیښتې په نیت »».

- **کله چې نفیر عام اعلان شي.**

د جهاد د فرض عین کېدلو دوهم حالت د نفیر عام دی. دا هغه وخت وي کله چې امیرالمؤمنین امر وکړي چې ټول جهاد ته راووځئ! له عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی، چې فرمایي: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ افْتَتَحَ مَكَّةَ: لَا هِجْرَةَ، وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ، وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا... (البخاري) یعنې: رسول الله صلی الله علیه و سلم د مکې د فتحې په ورځ وویل: تر نن وروسته هجرت نشته،

خو جهاد او نیت یې شته، او کله چې ټولو ته جهاد تـه د وتلـو اعـلان وشي نـو ټـول ووځئ!.

یعنې کله چې د امیر لخوا د نفیر عام اعلان وشي بیا په ټولو جهاد فرض عین کیږي.

**• دفاعي جهاد**

دا هغه حالت دی چې معاصر وخت کې امت ورسره لاس او ګرېـوان دی، کـه چېرته نن مونږ کوم بل هیواد ته تللي وی، هلته مو جهاد کـولی بیـا بـه مـو لـه مـور او پلاره اجازه غوښتې وه، لومړی به مو خپل قوت برابر کړی وو او..... نو ډېره د شرم او افسوس خبره ده چې اوس مونږ په هغه دفاعي حالت کـې یـو چـې د امـت د دومـره ذلت تصور هم نه کېده. که له غرناطې، مراکش، المغرب او ټول اندلس سترګې پټـې کړو، که د اسلامي نړۍ له ټولو مستعمره شـوو هېوادونـو سـترګې پټـې کـړو، کـه لـه فلسطین، برما، عراق او شام څخه سترګې پټې کړو، نو د خپل کلي او کور لـه کفـري اشغال څخه به څنګه سترګې پټې کړی شو؟؟؟

کله چې جهـاد دفـاعي وي، پـه دې معنـا سره چـې کفـار راغـلي وي او زمـونږ خاوره یې اشغال کړې وي، په دې حالت کـې جهـاد فـرض عـین دی، حکـم یـې د فرض لمانځه حکم دی، نه د مورجانې او پلار اجازه عذر جوړېدلی شي، او نه هم د کورنۍ سرپرستي. د همدې حالت په هکله الله تعالی فرمایي:

انْفِرُواْ خِفَافًا وَثِقَالاً وَجَاهِدُواْ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ الله ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُون.(التوبه۴۱)

ژباړه«: ځئ تاسي (غزا ته) حال داچـې سـپک اوسـئ او درانـه او جهـاد کـوئ تاسي په مالونو خپلو او په ځانونو خپلو په لاره د الله کې (د دین د ترقۍ لپاره)، دغه تګ غزاته) خیر بهتر دی تاسي ته که یئ تاسي چې پوهیږئ (په خپله ګټـه او تـاوان سره) ».

سبحان الله! الله تعالی په یوه ټکي د ټولو بهانه پالو بهانې څواب کړي دي. علماء کرام د خفاف او ثقال په اړه فرمايي چې:

۱-: که سپکې وسلې درسره وي او که درنې.

۲-: سلاح درسره وي او که نه وي.

۳-: که نر وي او که ښځې.

۴-: مجرد وي او که واده کړي وي.

۵-: اولاد والا وي او که بې اولاده.

٦-: ځوانان وي که زاړه.

۷-: چاغ وي او که خوار.

۸-: آزاد وي او که غلام وي.

۹-: وږي وي او که ماړه.

۱۰-: جوړ وي او که مريض.

دا هغه تفسيرونه دي چې علماء کرامو د خفاف او ثقال د ټکيو کړي دي. د فرض عين جهاد څخه د بهانو او پلمو په ذريعه د پاتې کېدونکو انجام د رسول الله صلی الله عليه و سلم په وخت کې هغه وو کوم چې له کعب بن مالک رضي الله عنه سره وشو. کعب بن مالک رضي الله عنه چې د رسول الله صلی الله عليه و سلم سره له يوې غزا څخه هم پاتې شوی نه و، خو کله چې د تبوک په غزا کې پاتې شو، نو پنځوس ورځې ورسره رسول الله صلی الله عليه و سلم خبرې ونکړې.

ځانونو ته بهانې مه لټوئ! د فرض عين جهاد په حالت کې مو يو عذر هم نه منل کيږي، همدا نن عزم وکړئ! او نور له جهادي لښکرو سره تر سپين بيرغ لاندې راټول شئ!

* * *

# د جهاد في سبيل الله فضائل

د الله تعالی په لاره کې جهاد کول د امت په اتفاق سره تر ټولو اعمالو بهترين عمل دی. د الله تعالی په کلام او د رسول الله صلی الله عليه و سلم په احاديثو کې د جهاد في سبيل الله غوندې د يوه عمل فضائل هم نه دي نقل شوي او د هېچا دومره فضائل نه دي بيان شوي لکه د مجاهد چې بيان شوي دي.

څومره فضائل چې د جهاد او مجاهد بيان شوي دي هغه د عالم، عابد، صدقه کوونکي، روژه نيوونکي او بل هېڅ عبادت کوونکي لپاره نه دي راغلي. د ځکندن چې څومره سخت حالتونه بيان شوي له ټولو څخه مجاهد خلاص دی. امام غزالي رحمه الله د الدرة الفاخره په نوم د زنکدن د حالت په باره کې يو کتاب ليکلی، او پکې رانقل شويو احاديثو څخه ښکاري چې يواځې د ملک الموت ليدل د زرو تورو له ګذار څخه ډېر سخت دی. خو يواځې مجاهد في سبيل الله داسې دی چې له دنياوي ژوند څخه د خلاصون پر مهال هم تکليف نهويني.

همدا راز د برزخ په ژوند کې هم چې د مجاهد لپاره کوم عزت راغلی د شهادت د فضائلو په موضوع کې به يې بيان کړو.

خو په لنډه توګه وايم: که د جهاد في سبيل الله په فضائلو کتابونه وليکل شي بيا يې هم نشي پوره کولی، مونږ به يې له سمندر څخه د څاڅکي په اندازه څو فضائل بيان کړو:

۱-: د جهاد غوندې اجر په بل عمل کې هېڅکله نه پيدا کيږي؛ ځکه جهاد د مسلسل لمانځه کوونکي او روژه نيوونکي تر اجر هم زيات اجر لري.

ښايي ډېر کله به مو د ځينو شيانو ډېر اجرونه اورېدلي وي، او ښايي ډېرو داسې کسانو ته به هم غوږ نيولی وي چې له جهاد پرته يې بل هر شی غوره ګاڼه.

خو راځئ! د رسول الله صلی الله علیه و سلم له حدیث څخه یې معلومه کړو چې کوم عمل د ډېر اجر لرونکی دی.

هغه احادیث چې جهاد تر ټولو نېکو اعمالو بهتر عمل ثابتوي تر شمېر وتلي دي، لکه ابو سعید خدري رضي الله عنه حدیث چې فرمایي: قِيلَ: يَا رَسُولَ الله، أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ؟ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مُؤْمِنٌ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ الله بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ. [٩]

یعنې: نبي صلی الله علیه وسلم ته وویل شول: کوم خلک تر ټولو غوره دي؟؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل: هغه مؤمن چې د الله جل جلاله په لار کې په مال او نفس سره جهاد کوي.

داسې احادیث تر شمار وتلي، خو مونږ به یواځې هغه احادیث را واخلو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خورا صراحت سره فرمایي چې تر جهاد غوره عمل نشته.

عن أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ الله عَنْهُ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ يَعْدِلُ الْجِهَادَ. قَالَ: لَا أَجِدُهُ. قَالَ: هَلْ تَسْتَطِيعُ إِذَا خَرَجَ الْمُجَاهِدُ أَنْ تَدْخُلَ مَسْجِدَكَ فَتَقُومَ وَلَا تَفْتُرَ، وَتَصُومَ وَلَا تُفْطِرَ؟. قَالَ: وَمَنْ يَسْتَطِيعُ ذَلِكَ؟ [١٠] ژباړه: له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی، وایي: رسول اللّه صلی الله علیه وسلم ته یو سړی راغی او ویې ویل: ما ته یو داسې عمل راوښایه چې په اجر کې له جهاد سره برابر وي! رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: زه داسې عمل نه مومم چې له جهاد سره برابر وي. بیا یې له سړي څخه وپوښتل: ایا ته کولی شې چې کله مجاهد د غزا لپاره ووځي ته مسجد ته ولاړ شې، لمونځ پیل کړې او

---

[٩](صحيح البخاري، بَاب أَفْضَلُ النَّاسِ مُؤْمِنٌ مُجَاهِدٌ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، رقم الحديث : ٢٧٨٦ وصحيح مسلم / باب فضل الجهاد والرباط رقم ١٨٨٨)

[١٠](صحيح البخاري، بَابُ فَضْلِ الجِهَادِ وَالسِّيَرِ/ رقم الحديث: ٢٧٨٥)

ستړی نشې او روژه ونیسې او ماته یې نکړې؟! او تر هغه دې عمل تـه دوام ورکـړې تر څو چې مجاهد له غزا څخه نوي راغلی؟؟؟ هغه سړي وويـل: دا عمـل د چا پـه توان کې شته؟؟

همدا راز ابو هريره رضي اللّٰه عنه فرمايي چې ما له رسول اللّٰـه صـلى اللّٰـه عليـه وسلم څخه واورېدل چې ويل يې: مَثَلُ الْمُجَاهِـدِ فِي سَـبِيلِ الله - وَالله أَعْلَـمُ بِمَـنْ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِهِ- كَمَثَلِ الصَّائِمِ الْقَـائِمِ... [١١] يعنـې: د مجاهـد في سبيل اللّٰـه، -اللّٰـه پوهيږي چې څوک د هغه په لار کې جهاد کوي- مثال د مسلسـل روژه نيـوونکي او مسلسل لمونځ کوونکي دی.

راځئ له ځان سره فکر وکړو؛ آیاد جهاد په شان اجر په بل عمل کې شته؟؟؟

## ۲-: له اللّٰه تعالی سره بيع کول.

اللّٰه تعالی مونږ ته زمونږ بدنونه راکړي، حقيقي مالک يې اللّٰه تعالی دی او مونږ يې صرف ځان ته نسبت کوو. خو اللّٰه تعالی دومره د رحم معامله راسره کوي چې په همدې وجودونو بيا هم بيع راسره کوي: اللّٰه تعالی فرمايي: **إِنَّ الله اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الله فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ وَمَنْ أَوْفَى بِعَهْدِهِ مِنَ الله فَاسْتَبْشِرُواْ بِبَيْعِكُمُ الَّذِي بَايَعْتُم بِهِ وَذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيم**. (التوبه ۱۱۱)

ژباړه: «بېشکه چې اللّٰه پيرودلي او اخيستي دي له مؤمنينو څخه نفسونه د دوی او مالونه د دوی (چې خپل ځان او مال په جهاد کې ښندي او قربانوي) په عوض د دې چې بېشکه شته (په بدل د دغه جهاد) دوی ته جنت، (دغه پيردول په دې شان

[١١] (صحيح البخاري، بَابٌ: أَفْضَلُ النَّاسِ مُؤْمِنٌ مُجَاهِدٌ بِنَفْسِـهِ وَمَـالِهِ فِي سَـبِيلِ اللَّهِ/ رقـم الحديث: ٢٧٨٧ )

دي چې) جنگونه کوي دوی په لاره د الله کې نو (کله) وژني مؤمنان دا (کفار) او (کله د کفارو له لوري) وژل کيږي دغه مؤمنان وعده ده په دغه (الله) باندې وعده حقه په تورات، انجيل او قران کې، او څوک دی ښه وفا کونکی په وعدې خپلې سره له الله څخه، (بلکې هيڅوک نشته) نو خوشحاله شئ تاسي (ای مؤمنانو) په بيع ستاسي باندې هغه چې معامله کړې ده تاسي له الله سره په هغې (بيع او شری سره) او دغه (بيع چې ده) هم دغه بری دی ډير لوی ».

په ياد شوي آيـت کـې کـه لـږ تـدبر وکـړو نـو يـوه بيعـه پـه نظـر راځـي، چـې اخيسـتونکی پکـې رب العـالمين دی، خرڅـوونکي پکـې مؤمنـان دي، مبيعـه (د خرڅلاو شی) د مؤمنانو نفسونه او مالونه دي، بدل يې جنت دی، د سپارلو ځای يـې د جهاد في سبيل الله ډگر او وژل کېدل دي، د بيعې ذمه خط پـه الهـي کتـابونو کـې شوی او د اخيستونکي په عهد باندې د وفا تاکيد بيا هم شوی. نـو آيـا خرڅـوونکي پخپل عهد وفا نه کوي؟؟؟

**٣-: د الله تعالی جنت، د جنت تر ټولو لويه درجه، د جنت سل درجې او د کاميابۍ وعده.**

کله چې په سورت توبه کې الله تعالی منافقين يو يو واضح او وشرمول، تر هغه وروسته د مجاهدينو اجرونه بيانوي او فرمايي: **لَٰكِنِ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ ءَامَنُوا مَعَهُۥ جَٰهَدُوا بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ وَأُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمُ الْخَيْرَٰتُ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ** (٨٨) **أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ** (التوبه ٨٨ ٨٩)

ژباړه: « ليکن رسول (د الله) او هغه کسان چـې ايـمان لرونکـي دي لـه ده سره، جهاد يې وکړ په مالونو خپلو او ځانونو خپلو، او دغه کسان همدوی لره دي ښيگڼې (فائدې) او دغه کسان همدوی دي په مـراد رسـيدلي (بريـالي). تيـار کـړي دي اللـه دوی ته جنتونه چې بهيږي له لاندې (د ماڼيو او ونو) دهغو (څلور قسمه) ويالې تـل به وي دوی په دغو (جنتونو) کې، دغه (ننوتل د جنت) بـری دی لـوی (پـه نفـس او شيطان) ».

بله دا چې دا دنیا انسان ته ډېره ستره ښکاري، زرګونه کلونه کیږي چې انسان پکې خواری تېروي خو لا یې هم د ځمکې هرې خواته ځان نه دی رسولی؛ خو دا هر څه الله تعالی ته د مچ د وزر قدر هم نه لري. نو کله چې الله تعالی یو شي ته عظیم او اعظم (لوی او ډېر لوی) ووایي نو د دې به څومره لویوالی وي؟؟؟ یقینًا چې د انسانانو ذهن یې درک نشي کولای. د مجاهد لپاره الله تعالی د اعظمو درجو وعده کړې: الَّذِينَ آمَنُواْ وَهَاجَرُواْ وَجَاهَدُواْ فِي سَبِيلِ اللهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ أَعْظَمُ دَرَجَةً عِندَ اللهِ وَأُوْلَئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ. ) التوبه ۲۰ )

(ژباړه: «هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی (په ټولو مومن به شیانو) او هجرت یې کړی دی او جهاد یې کړی دی په لاره د الله کې (د دین د ترقۍ لپاره) په مالونو خپلو (چې په جهاد کې یې لګوي) او په ځانونو خپلو (چې په غزا کې یې قربانوي) ډیر لوی دي« له نورو نه» له جهته د درجې په نزد د الله او همدغه « ستایل شوي» کسان همدوی دي په مراد رسیدونکي».

په سورت نساء کې بیا الله تعالی فرمایي: لَّا يَسْتَوِي الْقَٰعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجَٰهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فَضَّلَ اللهُ الْمُجَٰهِدِينَ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ عَلَى الْقَٰعِدِينَ دَرَجَةً وَكُلًّا وَعَدَ اللهُ الْحُسْنَىٰ وَفَضَّلَ اللهُ الْمُجَٰهِدِينَ عَلَى الْقَٰعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا. (النساء ۹۵)

ژباړه: « نه دي برابر (الله ته) کیناستونکی (په کور کې) له مؤمنانو نه (له جهاده) بې له خاوندانو د عذره او جهاد کوونکي په لاره د الله کې (د دین د ترقۍ لپاره) په مالونو خپلو سره او په ځانونو خپلو سره، فضیلت ورکړی دی الله جهاد کوونکو ته په (لګولو د) مالونو خپلو سره او (په جارولو د) ځانونو خپلو سره پر کیناستونکو باندې (له معذرته) په درجه کې، او له ټولو سره (که مجاهد وي او که معذور ناست) وعده کړې ده الله د ښې جزاء (جنت)، او فضیلت ورکړی دی الله جهاد کوونکو ته پر کیناستونکو (له معذرته) په اجر عظیم ډیر لوی سره».

په ذکر شوو آیتونو کې الله تعالی د درجې یادونه کوي، خو د رسول الله صلی الله علیه و سلم په یو حدیث کې مجاهد ته د سلو درجو زېری ورکول کیږي. له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی، چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: مَنْ آمَنَ بِاللهِ وَ بِرَسُولِهِ، وَأَقَامَ الصَّلَاةَ، وَصَامَ رَمَضَانَ، كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ، جَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللهِ، أَوْ جَلَسَ فِي أَرْضِهِ الَّتِي وُلِدَ فِيهَا. فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ، أَفَلَا نُبَشِّرُ النَّاسَ؟ قَالَ: إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ أَعَدَّهَا اللهُ لِلْمُجَاهِدِينَ فِي سَبِيلِ اللهِ، مَا بَيْنَ الدَّرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ... [١٢]

) یعنې: چا چې په الله تعالی باندې ایمان راووړ، لمونځ یې قائم کړ او روژه یې ونیوله، الله تعالی باندې (د شفقت له امله) حقه ده چې جنت ته به یې داخلوي، که یې جهاد کړی وي او که په خپل ټاټوبي کې پاتې وي. موجودو خلکو وویل: نورو خلکو ته دا زېری ونه وایو؟؟ نو رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: بې شکه الله جل جلاله په جنت کې سل درجې پیدا کړې چې دا یې د مجاهدینو لپاره برابرې کړې دي. چې د دوو درجو په منځ کې دومره فاصله ده، څومره چې د ځمکې او آسمان په منځ کې ده.

همدا راز له عبدالله بن ابي اوفي رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: وَاعْلَمُوا أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ (صحیح البخاري، بَابٌ: الجَنَّةُ تَحْتَ بَارِقَةِ السُّيُوفِ/ رقم الحدیث: ٢٨١٨) یعنې: او پوه شئ! چې جنت د تورو ترسیورو لا ندې دی.

د دومره سترو بشارتونو سره سره بیا هم په کور ناسته؟؟؟

**۴-: د الله تعالی لخوا مغفرت او اجرونه**

د مؤمن د دې دنیا ټول تکلیفونه او ټولې خوارۍ د دې لپاره دي چې الله تعالی ورته ښنه وکړي. د الله په لاره کې وژل کېدل خو له دې سربېره نو هم ډېر

[١٢]( صحیح البخاري، بَابُ دَرَجَاتِ المُجَاهِدِينَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ/ رقم الحدیث: ٢٧٩٠)

فضائل لري خو د الله په لاره کې وفات هم له مغفرت څخه خالي نه دی. الله تعالی فرمايي: وَلَئِن قُتِلْتُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ أَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ. (ال عمران ۱۵۷) يعنې: «او قسم دی خامخا که ووژل شوئ تاسي په لاره د الله کې يا مړه شوئ تاسي (په لاره د الله کې چې طاعت دی) نو خامخا مغفرت له جانبه د الله او رحمت (مهرباني د الله) خير (ډير ښه) دی له هغو (مالونو) چې دوی يې جمع کوي».

همدا راز د الله تعالی لخوا د مغفرت سره سره د سترو اجرونو وعده هم شوې ده. او دا وعدې يواځې تر شهادت او وفات محدودې نه دي، بلکې د جهاد في سبيل الله پر مهال د غلبې په حالت کې هم الله تعالی دا اجرونه ورکوي، ځکه الله تعالی فرمايي: فَلْيُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللهِ الَّذِينَ يَشْرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالآخِرَةِ وَمَن يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللهِ فَيُقْتَلْ أَو يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا. (النساء ۷۴) ژباړه: «پس جنگ دي وکړي په لاره د الله کې هغه کسان چې خرڅوي دوی حيات دنيوي (ژندون لږ خسيس) په اخرت او هر څوک چې جنگ وکړي په لاره د الله کې (د دين د ترقۍ لپاره) پس شهيد کړل شي يا غالب (غازي او بريالی شي پر دښمن) نو ژر به ورکړو موږ ده ته اجر ډير لوی (چې جنت دی) ».

الله تعالی په بل ځای کې فرمايي:

فَالَّذِينَ هَاجَرُواْ وَأُخْرِجُواْ مِن دِيَارِهِمْ وَأُوذُواْ فِي سَبِيلِي وَقَاتَلُواْ وَقُتِلُواْ لأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَلأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ ثَوَابًا مِّن عِندِ اللهِ وَاللهُ عِندَهُ حُسْنُ الثَّوَابِ. (ال عمران ۱۹۵)

ژباړه: « او هغه کسان چې هجرت کړی دی دوی (لپاره د دين) او ايستل شوي دي دوی له کورنو خپلو (د الله په لاره کې) او ضرر رسول شوی دی دوی ته په لاره زما کې او جنگونه يې کړي دي (له کفارو سره) او وژل شوي دي (په غزا کې) نوخامخا به لرې کړم هرو مرو له دوی نه گناهونه د دوی او خامخا به داخل کړم

هرومرو دوی په جنتونو کې چې بهيږي لـه لانـدې د (مـانيو او ونـو د) هغـو ويـالې، (جزا د نيکيو به ورکړو موږ دوی ته) په جزا ورکولو (نيکو) سره له نزده د اللّـه او اللّـه په نزد د ده دی ښه ثواب (نيکه جزا) ».

هغه کسان چې هجرت يې وکړ او له کورونو څخه وويستل شـول، زمـا پـه لار (جهاد) کې يې ضررونه وليدل، له کفارو سره وجنگيدل، او ووژل شـول، نـو خامخـا به زه د دوی گناهونه ښنم، او خامخا به يې هغه جنتونو ته داخلوم چې لاندې (له ونو او مانيو لاندې يې د شيدو او خوږو اوبـو) ويـالې روانـې دي. دا د اللّـه جـل جلالـه لخوا څخه د دوی د اعمالو بدله ده. او د اللّه جل جلاله سره ډيره ښه بدله شته.

د اللّه تعالی لخوا مغفرت؟؟؟!

د اللّه تعالی لخوا دومره اجرونه؟؟؟!

د اللّه تعالی لخوا جنت؟؟؟!

بيا هم زمونږ غفلت؟؟؟! سبحان اللّه!

**٥-: په جهاد کې د سهار او ماښام اجرونه**

که د جهادي ژوند د کلونو او مياشتو له اجرونـو څخـه سـترگې پټـې کـړو خـو يواځې د يوه سهار او يوه ماښام اجر يې هم دومره دی چې د ټولې دنيا رنگينی ورته هېرول پکار دي. د سهل بن سعد رضي اللّه عنـه پـه روايـت کـې چـې امـام بخـاري رحمه اللّه روايت کړی راځي چې: وَالرَّوْحَة يَرُوحُهَا الْعَبْـدُ فِي سَـبِيلِ الله أَوِ الْغَـدْوَةُ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا. (١٣)

يعنې: او يو ماښام چې يو بنده يې د اللّه تعالی په لار (جهاد) کې تېـروي او يـا يو سهار چې يو بنده يې د اللّه تعالی په لاره کې تېروي تر ټولې دنيـا او پـه دنيـا کـې چې کوم شيان دي غوره دی.

(١٣)( صحيح البخاري، بَابُ الغَدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، وَقَابِ قَوْسِ أَحَدِكُمْ مِنَ الجَنَّةِ/ رقم الحديث: ٢٧٩٢)

همداراز د ترمذي شريف په يوه روايت كې راځي چې: حسن رضي اللّه عنه فرمايي: نبي كريم صلى اللّه عليه وسلم يوه ډله د جهاد لپاره ولېږله. عبداللّه بن رواحة رضي اللّه عنه هم پكې وو. هغه ډله ولاړه او عبداللّه بن رواحه رضي اللّه عنه د دې لپاره پاتې شو چې د جمعې لمونځ د نبي كريم صلى اللّه عليه وسلم سره ادا كړي. كله چې نبي كريم صلى اللّه عليه وسلم لمونځ وكړ، عبداللّه رضي اللّه عنه ته يې وفرمايل: مَا مَنَعَكَ أَنْ تَغْدُوَ مَعَ أَصْحَابِكَ؟ ته ولې له خپلو ملگرو پاتې شوې؟ ولې سهار ورسره لاړې نه؟! هغه وفرمايل: ما دا خوښه كړه چې لمونځ له تاسو سره ادا كړم، بيا به پسې ځان ور ورسوم. رسول اللّه صلى اللّه عليه و سلم ورته وفرمايل: لَوْ أَنْفَقْتَ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مَا أَدْرَكْتَ فَضْلَ غَدْوَتِهِمْ. [١٤] يعنې: كه تا د ځمكې موجود ټول شيان صدقه كړي وى د دوى د يوه سهار اجر ته نشوى رسيدلى!

كه لږ فكر وكړو: عبداللّه بن رواحه رضي اللّه عنه د مسجد نبوي د لمانځه، د رسول اللّه د امامت د لمانځه او د جمعې د لمانځه لپاره پاتې وو، خو له دې سره سره يې رسول اللّه صلى اللّه عليه و سلم ملامتوي. د عبداللّه رضي اللّه عنه عزم هم دا وو چې لار يې رامعلومه ده او زما آس تېز دى، زه ځان ور رسولى شم خو بيا يې هم نبي عليه السلام ملامتوي او دا ورته وايي چې د ټولې دنيا په صدقې هم د هغوى د يوه سهار اجر نشې گټلى؛ نو كه يو څوک پخپل كلي او كور كې شپه او ورځ هم عبادت وكړي اول خو يې نشي كولى او كه يې وكړي بيا به هم څنگه د جهاد اجر ته ورسيږي؟؟؟

**٦-: د جهاد له امله د ويښو سترگو (بې خوبۍ) فضائل.**

كله چې په نبوي احاديثو كې له اور څخه د انسان د كوم اندام منع كېدل ذكر كيږي، دا د دې دليل دى چې دا كس به هېڅكله هم اور ته داخل نكړل شي، ځكه

[١٤] (سنن الترمذي، بَابُ مَا جَاءَ فِي السَّفَرِ يَوْمَ الجُمُعَةِ/ رقم الحديث: ٥٢٧)

د رحمان رب له رحم څخه دا ډېره لرې خبره ده چې يو اندام يې په اور حـرام او بـل بيا په اور وسوځوي.

نو په سترګو باندې د اور حرامېدل د جهنم څخه د خلاصون زېرى دى. لـه ابـو ريحانة رضي اللّٰه عنه څخه روايت دى، چې وايي: ما له رسـول اللّٰـه صـلى اللّٰـه عليـه وسلم څخه اوريدلي چې ويل يې: وَحُرِّمَتِ النَّارُ عَلَى عَيْنٍ سَهِرَتْ فِي سَبِيلِ اللّٰه [(١٥)]

يعنې: په هغو سترګو د جهنم اور حرام دى چې د اللّٰـه جـل جلالـه پـه لار كـې پيرې كولو باندې بې خوبه شوې وي.

خپلې سترکې په اور نه حراموئ؟!

راځئ ځوانانو چې د جهاد سنګرونه کلک وساتو!

---

[(١٥)](سنن النسائي، باب ثَوَابُ عَيْنٍ سَهِرَتْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ / رقم الحديث: ٣١١٧)

**٧-: جهادي گرد او غبار د جهنم اور او دود هم ځان ته نه پرېږدي**

له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی، چې رسول الله صلی اللّه عليه و سلم وفرمايل:... وَلَا يَجْتَمِعُ غُبَارٌ فِي سَبِيلِ اللهِ، وَدُخَانُ جَهَنَّمَ. [١٦] يعنې: په يوه بنده باندې د اللّه جل جلاله د لارې (جهاد) گرد او دجهنم اور نه جمع کيږي.

د جهنم له دود او اور څخه ځانونه نه خلاصوئ؟!

د امت ځوانانو! حی على الجهاد!

**٨-: جهاد د اسلام تر ټولو لوړه څوکه**

جهاد د دې امت رهبانيت او هغه عمل دی چې هر قدم يې ځان ته ثواب لري. د غره په سر تر ټولو لوړې څوکې ته په عربي ژبه کې ذروة وايي. څنگه چې اسلام مجسم نه دی نو رسول اللّه صلی اللّه عليه و سلم يې له مجسم شي سره تشبيه کوي او جهاد بيا د همدې مجسم تر ټولو لوړه څوکه يادوي. معاذ رضي اللّه عنه په يوه اوږده حديث کې فرمايي چې رسول اللّه صلی اللّه عليه راته وفرمايل: أَلَا أُخْبِرُكَ بِرَأْسِ الْأَمْرِ كُلِّهِ وَعَمُودِهِ وَذِرْوَةِ سَنَامِهِ؟ قُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ الله. قَالَ: رَأْسُ الْأَمْرِ الْإِسْلَامُ، وَعَمُودُهُ الصَّلَاةُ، وَذِرْوَةُ سَنَامِهِ الْجِهَادُ. [١٧]

يعنې: آيا زه تا ته اصلي کار، د هغه ستنې او د هغه لوړه څوکه ونه ښايم؟! ما وويل: ولې نه! هغه (صلی اللّه عليه و سلم) وفرمايل: د دين بنسټ اسلام دی او ستنه يې لمونځ دی او لوړه درجه (کومی/ بوک) يې جهاد دی.

په پخوانيو امتونو کې به چې کوم مؤمن په ريښتوني توگه له اللّه تعالی او د هغه له دين سره محبت درلود نو رهبانيت به يې انتخاباوه. له خپل کلي کور او خپلو

---

[١٦] (سنن ابن ماجه، باب الخروج في النفير/ رقم الحديث: ٢٧٧٤)

[١٧] ( سنن الترمذي، بَابُ مَا جَاءَ فِي حُرْمَةِ الصَّلَاةِ/ رقم الحديث: ٢٦١٦).

خپلوانو به جلا شو او په يواځې ځای کې به يې د الله تعالی عبادت کاوه، خو رسول الله صلی الله عليه و سلم فرمايي: لِكُلِّ نَبِيٍّ رَهْبَانِيَّةٌ، وَرَهْبَانِيَّـةُ هَـذِهِ الْأُمَّـةِ الْجِهَـادُ فِي سَبِيلِ الله. [۱۸] يعنې: د هر نبي لپاره به رهبانيت وو خو د دې امت رهبانيت جهاد في سبيل الله دی.

په پورتني حديث کې که لږ غور وکړو نـو را معلومـه بـه شي چـې څنگـه چـې پخوانيو راهبانو له خپل ژوند سره پوره مخه ښه کړې وه او په کامله معنا يې ځان اللـه تعالی ته وقف کړی و، د دې امت مجاهدين بايد همداسې وي چې په کامله معنا بـه الله تعالی ته ځان سپاري.

همدا راز يواځې جهاد في سبيل الله دی چې الله تعالی يـې د هـر قـدم د اجـر ځان ته يادونه کوي. که د لمانځه د ثواب خبره راشي، نو دلمانځـه د قيـام، رکـوع او تلاوت لپاره جدا ثواب نه بيانوي، بلکې ټول لمونځ ثواب او اجر لري، خـو د جهـاد في سبيل الله په اړه بيا الله تعالی پخپله وضاحت کوي او فرمايي:

ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ وَلَا نَصَبٌ وَلَا مَخْمَصَةٌ فِي سَبِيلِ اللهِ وَلَا يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا يَغِيظُ الْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُم بِهِۦ عَمَلٌ صَٰلِحٌ إِنَّ اللهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ. (التوبه ۱۲۰)

ژبـاړه«: دغـه (وجـوبي متابعـت او نهـي د مخالفـت) پـه سـبب د دې دي چـې بېشکه دوی چې دي، نه رسيږي دوی ته تنده او نه ستوماني او نه لوږه په لاره د اللـه کې او نه ږدي دوی قدمونه پر کوم ځای (له ځايونو د کفارو داسي قدمونه) چې پـه قهر سره راولي (دغه قدمونه) کفارو لره او نه رسيږي دوی هيڅ دښمن ته په رسـيدلو سره (چې وژل يا بندي کول يا لوټ کول د هغو دي) مگر ليکل شـوي دي دوی تـه په سبب د هر يوه له دغو مذکوره و شيانو عمل نيک، بېشکه چې الله نه خرابوي اجر (ثواب) د نيکي کوونکو».

---

[۱۸] (مصنف ابن أبي شيبة، مَا ذُكِرَ فِي فَضْلِ الْجِهَادِ وَالْحَثِّ عَلَيْهِ/ رقم الحديث: ۱۹۳۳۳)

پدې آیت کې الله تعالی د جهاد في سبیل الله (لوږه، تنده، بدني سترړیا، د کفارو په غوسه پاروونکو او ناخوښو لارو قدم ایښودل او له دښمن څخه غچ اخیستل... دا هر څه جدا جدا د نېکیو کارونه یادوي) سره له دې چې په جهاد في سبیل الله کې دا ټول پخپله شامل دي. لدې څخه ښکاري چې الله تعالی ته جهاد څومره خوند ورکوي او د خپلو بندگانو لپاره یې د اجرونو څومره لویه لار پرانیستې ده.

## ۹-: جهاد د مسجد حرام تر جوړولو او د حاجیانو تر اوبولو هم ډېر اجر لري

که له ځان سره حساب وکړو نو د مسجد حرام جوړول دومره اجر لري چې انسان یې تصور نشي کولی، ځکه؛ په مسجد حرام کې چې څوک یو لمونځ وکړي نو د یولک لمونځونو اجر ورکول کیږي، او چا چې مسجد حرام جوړ کړ هغه د هر لمونځ کوونکي په اجر کې شریک دی، همدا راز چې اوسنی حساب وشي چې په هر لمانځه کې له نبوي عهد څخه تر اوسه پورې څومره خلک لمونځ کوي نو پدې ټولو کې د مسجد حرام جوړوونکي شریک دي خـــو بـیا هم الله تعالی د جـــهاد اجر تر دې لوړ گڼي.

امام مسلم رحمه الله روایت کړی چې نعمان بن بشیر رضي الله عنه فرمایي: زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم له منبر سره وم، یوه سړي وویل: تر اسلام وروسته زه د هېڅ شي پروا نه لرم چې هېڅ عمل ونه کړم صرف دا چې حاجیانو ته اوبه ورکړم، بل وویل: زه هېڅ پروا نه لرم چې تر اسلام وروسته کوم عمل وکړم صرف دا چې مسجد حرام آباد کړم. بل وویل: د الله په لاره کې جهاد کول تر دې شیانو افضل دي چې تاسو وویل. عمر رضي الله عنه زجر ورکړ چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د منبر په وړاندې خپل غږونه مه پورته کوئ! (دا د جمعې ورځ وه) خو چې مونږ کله د جمعې لمونځ وکړ نو زه به ورشم او دا پوښتنه به ترېنه وکړم؛ نو الله تعالی دا آیت رانازل کړ: أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَاجِّ وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ

ءَامَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْءَاخِرِ وَجٰهَدَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ لَا يَسْتَوُنَ عِنْدَ اللّٰهِ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِينَ (التوبة/١٩)

ژباړه: «ایا گرځولي دي تاسي اوبه ورکول حاجیانو ته او ودانول د مسجد حرام په مثل (د ایمان) د هغه چاه چې ایمان او یقین لري په الله او پـه ورځـې د اخـري (د قیامت) او جهاد یې کړي وي په لاره د الله نه دي برابر دوی په نـزد د اللّٰـه او اللّٰـه نـه ښیی سمه صافه لاره قوم ظالمانو ته».

ای ځوانانو! د مسجد حرام تر جوړولو او د حاجیانو تر اوبولـو ډېـر اجرونـه، نـه غواړئ؟؟؟

## ١٠-: د اوښې د لوشلو په اندازه چې چا جهاد وکړ جنت ورته واجب شو

له معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی اللّٰـه علیـه و سلم وفرمایل: مَنْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ الله فُوَاقَ نَاقَةٍ فَقَدْ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ. [١٩]

ژباړه: چا چې د اوښې د لوشلو په اندازه جهاد وکړ نو جنت ورته واجب شو.

همدا راز د ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې فرمایي: د رسـول اللّٰـه صلی الله علیه وسلم یو ملگری په یوې درې تېرېده چې یوه وړوکـې د خـوږو اوبـو چینه پکې وه، نو دې خوږ والي ډېر خوند ورکړ. (له ځان سره) یې وویـل: کـه زه لـه خلکو جلا شوی وی او پدې درې کې مې اقامـت اختیـار کـړی وی... نـه! تـر هغـه داسې نه کوم تر څو چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اجازه وغواړم. نو دا خبره یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یاده کړه، نو هغـه صـلی اللّٰـه علیـه وسـلم ورته وفرمایل: لَا تَفْعَلْ، فَإِنَّ مُقَامَ أَحَدِكُمْ فِي سَبِيلِ الله أَفْضَلُ مِـنْ صَـلَاتِهِ فِي بَيْتِـهِ سَبْعِينَ عَامًا، أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ الله لَكُمْ وَيُدْخِلَكُمُ الْجَنَّـةَ؟ اغْـزُوا فِي سَـبِيلِ الله، مَنْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ الله فَوَاقَ نَاقَةٍ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ. [٢٠] یعنې: داسې مه کوه! ځکه د اللّٰـه

[١٩] (سنن أبي داود، بَابٌ فِيمَنْ سَأَلَ اللَّهَ تَعَالَى الشَّهَادَةَ/ رقم الحديث: ٢٥٤١)
[٢٠] (سنن أبي داود، بَابٌ فِيمَنْ سَأَلَ اللَّهَ تَعَالَى الشَّهَادَةَ/ رقم الحديث: ٢٥٤١)

په لاره کې (جهاد کې) ستاسو د یوه مقام د هغه په کور کې د هغه تر اویا کلونو لمانځه ډېر اجر لري. آیا نه غواړئ چې الله تعالی درته مغفرت وکړي او جنت ته مو داخل کړي؟؟؟ د الله په لاره کې غزا وکړئ! چا چې د الله په لاره کې د اوښې د لوشلو په اندازه قتال وکړ نو جنت ورته واجب شو.

ځان ته جنت نه واجبوئ؟! که وایاست چې: ولې نه! نو راځئ او د مجاهدینو په منځ کې ځان ته ځای پیدا کړئ!

**۱۱-: بالآخره داسې اجر چې انسان یې شمېرلی نشي**

د جهاد في سبیل الله په اړه مو په پیل کې وویل چې تر ټولو عبادتونو د لوړ اجر عبادت جهاد في سبیل الله دی، خو په هر حال: دا لوړ اجرونه ټول داسې ول چې انسان یې تصور کولی شوی، خو دا حدیث داسې دی چې د انسان تر عقل بیخي لوړ دی: عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: حَرْسُ لَيْلَةٍ فِي سَبِيلِ الله أَفْضَلُ مِنْ صِيَامِ رَجُلٍ وَقِيَامِهِ فِي أَهْلِهِ أَلْفَ سَنَةٍ، السَّنَةُ ثَلَاثُمِائَةٍ وَسِتُّونَ يَوْمًا وَالْيَوْمُ كَأَلْفِ سَنَةٍ[۲۱]. ژباړه: له انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دی چې ما له رسول الله صلی اله علیه و سلم څخه واورېدل چې ویل یې: د الله په لاره کې یوه شپه پیره کول د یو سړي تر زرکاله روژو نیولو او لمانځه کولو بهتره ده. کال یې درې سوه او شپېته ورځې او هره ورځ بیا د زرو کلونو په برابر (بیا هم د الله په لاره کې یوه ورځ پیره ترې ډېر اجر لري)

د دې حدیث په اړه نور زما تصور کار نه کوي، که غواړئ چې دومره اجر وګټئ، نو د اسلامي امارت صفونو ته راشئ؟؟؟

**د فضائلو په اړه یوه مهمه خبره:**

په قران او احادیثو کې چې د جهاد څومره فضایل ذکر شوي او ځیني یې موږ دلته بیان کړل، په موږ کې باید تحرک راولي او احساس مو را بیدار کړي. که یو

[۲۱](سنن ابن ماجة/ بَابُ فَضْلِ الْحَرَسِ وَالتَّكْبِيرِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ/ رقم الحديث: ۲۷۷۰)

ځوک له جهاد پاتې وي باید دا فضائل وګوري او د ځان ور رسولو کوښښ وکړي، خو مجاهد باید پدې مغرور نشي چې زه خو داسې فضائل لرم، بلکې مجاهد باید دا احساس وکړي چې الله تعالی چې دومره فضائل راکړي باید همدومره ورته ځان نږدې کړم، عاجزي وکړم او پر دین باندې د استقامت غوښتنه ځني وکړم.

* * *

## د جهاد د پرېښودلو الهي او نبوي وعیدونه

ځیني هغه کسان چې پخپله د جهاد غیرت نه لري، دا نشي کولی چې د جهاد في سبیل الله عملي ډگر ته راشي نو د جهاد احکام ځکه منحرفوي چې که چېرته یې په واضحو ټکو فرضیت بیان کړي خو اول به خپل مقتدي او ملگری ورته وایي چې: محترمه! ته ولې نه ځې؟!

نو د همدې له امله د جهاد په هکله هغه آیتونه را اخلي چې: د فرض کفایي جهاد په اړه راغلي وي او کله چې جهاد فرض عین وي بیا یې پرېښودونکي سره هغه معامله کیږي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم له کعب بن مالک رضي الله عنه سره وکړه. کعب بن مالک رضي الله عنه چې د تبوک له غزا څخه پاتې شو، رسول الله صلی الله علیه و سلم تر هغه ورسره خبرې ونکړې تر څو چې الله تعالی یې توبه قبوله کړله او تر پنځوس ورځو نه غځېدلو وروسته یې په هکله آیتونه نازل شول.

هغه کسان چې نن له جهاد څخه ناست دي ولې د کعب بن مالک له قصې څخه عبرت نه اخلي؟؟؟

الله تبارک و تعالی د چا جهاد ته محتاج نه دی، خو که ته جهاد ته لاړ نشې ته به له فضائلو محروم او په عذابونو اخته شې!

که ته جهاد ته لاړ نشې جهادي صف به ستا په نشتون مات نشي بلکې پخپله به دا تاوانونه وکړې:

**۱-: که ته جهاد ونکړې؛ درناکه عذاب به درکړل شي، او ستا پـه ځـای بـه نور راشي.**

الله تعالی فرمايي: إِلاَّ تَنفِرُواْ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلاَ تَضُرُّوهُ شَيْئًا وَاللّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. (التوبه/۳۹)ژباړه: « که ونه وځئ تاسي (غزا ته او د رسول صلی الله علیه وسلم سره ولاړ نشئ) نو په عذاب به کړي الله تاسي په عذاب دردناک سره او بدل به راولي (بل) قوم چې غیر له تاسي وي او نه به رسوئ ضرر تاسي دغـــه الله (یا رسول الله) ته د هیـــځ شي، او الله پرهر شي (چې اراده وفرمايي) ښـــه قادر دی ».

الله تعالی يې پخپله بيان کوي چې ستا نشتون د مجاهدينو د شکست لامـل نـه دی، بلکې ته به پخپله داسې حالت کې و اوسې چې الله تعالی به درځخه نـا راضـه وي.

**۲-: که ته جهاد ته لاړ نشې؛ په منافقينو کې به حساب شې**

مونږ چا ته منافق نه وايو؛ خو کوم احکام او علائـم چـې قـرآن کـریم او نبـوي احادیثو بیان کړي دي باید په زغرده بیان شي. کـه پـه چـا بانـدې د منـافق ټکـی بـد لګیږي خو باید له ځان څخه دا صفت لرې کړي. دا وضاحت متعال رب کړی چې:

إِنَّمَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ لاَ يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَارْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُون. (التوبه/ ۴۵)

ژباړه: « بېشکه همدا خبره ده چې اجازه غواړي له تانه (ای محمـده د تخلـف) هغه کسان چې ایمان نه لري (په ټېه) په الله او پر ورځې اخري باندې (چـې قیامـت دی) او چې شکمن دي زړونه د دوی (د دین پـه حقانیـت کـې) نـو دوی پـه شـک خپل کې سرګردانه (او متحیر) دي».

همدا راز له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی هغــه وايـي: قَـالَ رَسُـولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ مَــاتَ وَلَمْ يَغْــزُ، وَلَمْ يُحَـــدِّثْ بِـهِ نَفْسَـهُ مَـاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ[۲۲]

يعنې: نبي صلی الله عليه وسلم وفرمايل: چا چې نه غزا وکړه او نه يې لـه ځـان سره د جهاد عزم وکړ او مړ شو، نو هغه د نفاق په يوه شعبه باندې مړشو.

استغفر الله تعالی!

له ځان سره پخپله فکر وکړه! آيا غواړې چې د محشر په ورځ د منـافقينو کتـار کې ولاړ يې؟؟؟

که دا دې خوښه نه وي نو همدا نن راشه او د مجاهدينو په ليکو کـې ځـان تـه ځای پيدا کړه!

**۳-: که تا ته جهاد محبوب نه وي؛ نو د الله عذاب ته انتظار اوسه!**

د الله په لاره کې جهاد نه کول د دې خبرې زېرنده وي چې بنده ورسره محبت نه لري، سخت يې ګڼي، مشکلاتو ته يې غېږ نشي ورکولی، نو بيا کله د مور او پلار بهانې کوي کله د کورنۍ او کله بيا هغه خبرې کوي چې وروسته به يې په (د دروغو عذرونه) په موضوع کې بيان کړو. خو پدې آيت ښه فکر وکړه چې: **قُلْ إِن كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ اللهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُواْ حَتَّى يَأْتِيَ اللهُ بِأَمْرِهِ وَاللهُ لاَ يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ**. (التوبه/ ۲۴)

ژباړه: «ووايه« ای محمده! عذر ويونکو ته د هجرت له ترکه» کـه وی پلرونـه او زامن ستاسي او ورونه ستاسي او ښځې ستاسي او خپلوان ستاسي او هغه مالونه چـې ګټلي دي تاسي هغه او (هغه) تجارت او سوداګري چې ويرېږئ تاسي د نـا چليـدلو

[۲۲](صحيح مسلم/ بَابُ ذَمِّ مَنْ مَاتَ، وَلَمْ يَغْزُ، وَلَمْ يُحَدِّثْ نَفْسَهُ بِالْغَزْوِ/ رقم الحديث: ۱۹۱۰).

د هغې او هغه ځایونه د استوګنې چې خوښوئ تاسي هغه، ډیر محبوب تاسي تـه لـه الله نه او له رسول د الله نه او له جهاده په لاره د الله کې (له پاره د ترقـی د دیـن) نـو انتظار کوئ تاسي ترهغه پوري چې راولي (راولیږي) الله امر (حکم د عذاب) خپـل او الله نه ښیی سمه صافه لار قوم فاسقانو ته ».

د الله تعالی عذاب ته ټینګېدل د چا د وس خبره ده؟؟ آیا ته یې تاب لـرې؟؟؟ که یې تاب نه لرې، نو همدا نن: زامن، ورونه، مور او پلار، کورنۍ، اولادونه، کلـی او ټبر... هر څه پرېږده او د حی علی الجهاد نعرې ته لبیک ووایه!

**۴-: که ته جهاد ونکړې؛ پخپلو لاسو به ځان هلاکت ته واچوې.**

د بندګانو ناقص فکر خو دا وایي چې کله څوک جهاد ته لاړ شي نو د هلاکت سبب یې ګرځي؛ خو د الله تعالی فیصله بیا په حقیقت ولاړه ده چې:

**وأَنفِقُواْ فِي سَبِيلِ الله وَلاَ تُلْقُواْ بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ وَأَحْسِنُوَاْ إِنَّ الله يُحِبُّ الْمُحْسِنِين. (البقره/۱۹۵)**

ژباړه: « او صرفوئ (مالونه خپل) په لاره د الله کې او مه غورځوئ ځانونه خپل په هلاکت کې (چې جهاد ترک کړئ او خپل مالونه په غزا کې ونه لګوئ) او نیکـې کوئ (له هرچاه سره مخصوصا له غازیانو سره) بېشکه چې الله دوستي کوي له نیکو کارانو سره (چې ثواب ورکوي دوی ته) ».

د الله تعالی خوښه دا ده چې که کـوم کـس جهـاد او پـه جهـادي لار مصرف کول پرېښودل نو پخپل لاس به یې ځان هلاکت ته اچـولی وي او د هغـه د هلاکـت لامل بل څوک نه دی.

لـه ځـان سره فکـر وکـړه! آیـا غـواړې چـې پخپلـو لاسـونو ځـان هلاکـت تـه واچوې؟؟؟!

**۵-: که ته جهاد ونه کړې؛ تر قیامت مخکې به عذاب درکړل شي**

د اللّٰه تعالی د آخرت عذابونه دومره لوړ دي چې تصور یې تاب نشي راوړلی، خو هغه کسان چې جهاد نه کوي پدې دنیا کې به هم اللّٰه تعالی عذاب ورکړي. ځکه ابو امامة رضي اللّٰه عنه له رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم څخه روایت کوي چې هغه (صلی اللّٰه علیه وسلم) وفرمایل: مَنْ لَمْ يَغْزُ، أَوْ يُجَهِّزْ غَازِيًا، أَوْ يَخْلُفْ غَازِيًا فِي أَهْلِهِ بِخَيْرٍ أَصَابَهُ اللهُ بِقَارِعَةٍ. قَالَ يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ رَبِّهِ فِي حَدِيثِهِ: قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ. [۲۳] ژباړه: هغه څوک چې نه جهاد کوي، نه غازي ته د جهاد سامان برابروي، او نه د غازي د کور او مال ښه څارنه او ساتنه کوي؛ اللّٰه جل جلاله به له قیامت څخه وړاندې (یعنې په ژوند کې) ورته عذاب ورسوي. که پدې دنیا کې له عذاب ځان ساتل غواړې نو؛ د دې حدیث په رڼا کې ځان وساته!

راشئ د اسلامي امارت سره بیعت وکړئ، د اسلام د ساتنې په همدې کلا کې مالونه مصرف کړئ، ځانونه قربان کړئ او د اسلامي نظام تر نفاذ پورې جهادي سنگرونه گرم وساتئ!.

**٦-: که ته جهاد ونه کړې؛ په ذلت کې به مبتلا شې**

دنیا پال خو مال او دنیاوي متاع عزت گڼي، خو مؤمن ته خپل دیني عزت تر هر څه لوړ دی. خپله دیني لوړتیا خپل روح گڼي او دیني ځوړتیا د مرگ مرادفه گڼي.

که مونږ جهاد ونه کړو اللّٰه تعالی به ذلت رابانديې مقرر کړي (لکه د امت اوسني غفلت چې امت دې موجوده ذلت ته ورساوه). څه کم دوه ملیارده مسلمانان خپله قبله نشي آزادولی. اسلامي نظام نشي حاکمولی او خپلې محبوسې خویندې د کفارو له زندانونو څخه نشي آزادولی.

---

[۲۳](سنن ابي داود/ بَابُ كَرَاهِيَةِ تَرْكِ الْغَزْوِ/ رقم الحديث: ۲۵۰۳)

له عبدالله ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی هغه وايي: ما لـه رسـول اللّـه صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلي چې فرمايل يـې: إِذَا تَبَـايَعْتُمْ بِالْعِينَـةِ، وَأَخَـذْتُمْ أَذْنَابَ الْبَقَرِ، وَرَضِيتُمْ بِالزَّرْعِ، وَتَرَكْتُمُ الْجِهَادَ؛ سَلَّطَ الله عَلَيْكُمْ ذُلًّا لَا يَنْزِعُـهُ حَـتَّى تَرْجِعُوا إِلَى دِينِكُمْ. [٢٤] يعني: کله چې تاسو عينه بيعه وکړه (دا يوه حرامه بيعـه ده) او د غوايو لکۍ مو ونيولې (په مالدارۍ او دنيا مشغول شوئ) او جهاد مو ترک کړ؛ الله جل جلاله به ذلت دربانديې مسلط کړي تر هغه پورې به دا ذلت درنه لرې نشي چې څو مو بېرته خپل دين ته رجوع نه وي کړې (جهاد مو نه وي شروع کړی).

تر څو مو چې جهاد نه وي کړی عزت نشو تر لاسه کولی. که غـواړئ چـې لـه ذلـت څخـه خـلاص شـئ! کـه غـواړئ چـې د کفـارو لـه منګولـو خپلـې خوينـدې راخلاصې کړئ! نو د جهاد في سبيل الله لپاره ملا وتړئ!

**٧-: که ته جهاد ونه کړې؛ الله تعالی ته به بې دليله او د نقصان حالت کـې مخامخ کيږې!**

له الله تعالی څخه هېڅ شی پـټ نـه پـاتې کيـږي. اللّـه تعـالی بـه د هـرې ذرې پوښتنه کوي او د هغه سره سم به بدل راکوي: ابو هريره رضي الله عنه وايـي: رسـول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي: مَنْ لَقِيَ الله بِغَيْرِ أَثَرٍ مِنْ جِهَادٍ، لَقِيَ الله وَفِيهِ ثُلْمَةٌ. (الترمذي) ژباړه: څوک چې له الله جل جلاله سره مخامخ شي او د جهاد في سـبيل الله څه نښه ورسره نه وي نو پداسې حال کې به د اللّـه جـل جلالـه سره مخـامخ شي چې پده کې به نقصان او خلل وي.

چې د الله جل جلاله په حضور کې د نقصان په حالت کې ولاړ يو، الله تعـالی به کومه معامله راسره وکړي؟؟؟

جهاد په حقيقت کې بيعت دی. په اوسني وخت کې چې تـر څـو امـير امـر نـه وي کړی په هېڅ بخش کې دې جهاد نه قبليږي، او د قبوليـت لپـاره بايـد خامخـا د

[٢٤] (سنن ابي داود/ بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ العِينَةِ/ رقم الحديث: ٢٥٠٣)

امير بيعت په غاړه کې ولرې! له عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم وويل: مَنْ خَلَعَ يَدًا مِنْ طَاعَةٍ لَقِيَ الله يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا حُجَّةَ لَهُ، وَمَنْ مَاتَ، وَلَيْسَ فِي عُنُقِهِ بَيْعَةٌ مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً. (٢٥) ژباړه: چا چې له اطاعت څخه لاس وايست، د قيامت په ورځ به د الله تعالی سره پداسې حال کې مخامخ شي چې د خپل برائت لپاره به ورسره هيڅ دليل نه وي، او څوک چې پداسې حالت کې مړ شي چې په غاړه يې د مسلمان امير بيعت نه وي نو هغه د جاهليت په مرگ سره مړ شو.

جهاد کې اولنی شرط بيعت او اطاعت دی. که غواړئ چې مرگ مو د جاهليت مرگ نشي او که غواړئ چې الله تعالی ته په سپين مخ ودرېږئ! نو له جهاد څخه د سترگو د رپ په اندازه هم مه لرې کېږئ!

* * *

(٢٥) (صحيح مسلم/ بَابُ الْأَمْرِ بِلُزُومِ الْجَمَاعَةِ عِنْدَ ظُهُورِ الْفِتَنِ وتحذير الدعاة إلى الكفر/ رقم الحديث: ١٨٥١)

## له شهادت سره محبت او فضائل يې

شهادت؛ يعنې: هغه ورکه هيله چې کلونه مو ورته سترې انتظار کړی.

د الله په لاره کې شهادت هغه ستر نعمت دی چې الله تعالی هر څوک پرې نه نازوي؛ څو چې په کامله معنا د الله تعالی محبوب نه وي. شهادت د جهاد او استشهاد د سپېڅلې قافلې وروستۍ هيله ده.

که د شهادت له ټولو فضائلو او تلپاتې پېرزوينو څخه سترگې پټې کړو؛ بيا هم يواځې د رسول الله تمنا پدې ارځي چې مونږ د دې مسير خاپونه تتبدو ته پرې نږدو. ځکه شهادت هغه مسير دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ لَوَدِدْتُّ أَنِّيْ أُقْتَلَ فِيْ سَبِيْلِ الله ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلَ، ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلَ، ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَل. [٢٦] يعنې: په هغه ذات مې قسم چې زما نفس يې په لاس کې دی: زه خامخا دا خوښوم چې د الله په لار کې ووژل شم، بيا ژوندی شم بيا ووژل شم، بيا ژوندی شم بيا ووژل شم، بيا ژوندی شم بيا ووژل شم.

هغه مقام چې رسول الله صلی الله عليه و سلم يې تمنا کوي خامخا به د لوړتيا انتهاء وي.

د دې ژوند پای ته رسېدل درې برخې لري. د ځنکدن شېبه، د قبر ژوند او تر قبر وروسته د آخرت ژوند.

### ۱-: د شهيد د ځنکدن ژوند

د انسان د مړينې ابتدايي سخته شېبه د ځنکدن حالت دی. هغه چې په رسول الله صلی الله عليه و سلم يې هم سکرات ښکارېدل، هغه چې د زرو تورو تر گذار

---

[٢٦](أخرجه البخاري في بَاب: الجِهَادُ مِنَ الإِيمَانِ/ رقم الحديث:٣٦،و مسلم في الجهاد /باب فضل الجهاد والخروج في سبيل الله رقم ١٨٧٦)

هم ډېر سخت دی، او هغه چې روح په زور له بدن څخه جلا کیږي. خو د شهید د مرګ سکرات په نشت حساب دي، او د شهادت شېبه تر هر رنګه ځنکدن آسانه شېبه ده، څکه له ابوهریر رضي اللّٰه عنه څخه روایت دی چې رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه و سلم وفرمایل: مَا يَجِدُ الشَّهِيْدُ مِنْ مَّسِّ الْقَتْلِ اِلَّا كَمَا يَجِدُ أَحَدُكُمْ مَسَّ الْقَرْصَةِ [٢٧] یعنې: شهید د قتل له درد څخه صرف دومره درد مومي لکه تاسو کې چې یو د مېږتون له چیچلو څومره درد احساسوئ.

دومره آسانه ځنکدن؟؟؟ په اللّٰه قسم! کله چې د ځنکدن د سختیو تصور هم انسان وکړي نو یواځې له سخت ځنکدن څخه د ځان ساتلو لپاره هم شهادت تر هرې لارې لنډه لار ده.

**٢-: د شهید د قبر ژوند او نور فضائل**

د مرګ څخه وروسته دوهمه مرحله د قبر ژوند دی چې د برزخ ژوند ورته ویل کیږي. د برزخ ژوند له هغې شېبې پیل کیږي چې د جنازې راوړوونکي خلک په قبر باندې خاورې واړوي او ملائکې راشي او مړی راپاڅوي، په صحیح حدیث کې راځي چې مړی د هغو خلکو چې د مړي جسد یې راوړی وو، د پښو ښکالو اوري.

نور د ملائکو پوښتنې کرویږنې پیل شي...

خو یواځې شهید دی چې: د رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه و سلم له یوه صحابي څخه روایت دی، چې یو کس وویل: يَا رَسُولَ الله، مَا بَالُ الْمُؤْمِنِينَ يُفْتَنُونَ فِي قُبُورِهِمْ إِلَّا الشَّهِيدَ؟ قَالَ: كَفَى بِبَارِقَةِ السُّيُوفِ عَلَى رَأْسِهِ فِتْنَةً. [٢٨] یعنې: اې د اللّٰه رسوله! (صلی اللّٰه علیه و سلم) په مؤمنانو څه شوي چې په قبر کې امتحانیږي خو

---

[٢٧] (الترمذي / بَابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ المُرَابِطِ / رقم الحديث: ١٦٦٨)
[٢٨] (سنن النسائي / باب الشهيد / رقم الحديث: ٢٠٥٣)

یوازي شهید نه امتحانیږي؟؟ (یعنې دا ولې؟) نو (رسول الله صلی الله علیه و سلم) وفرمایل: د هغه د امتحان لپاره د هغه په سر باندې د تورو پړکا بس وه.

د ملائکو له پوښتنو څخه خلاصېدل له هغه عذابونو څخه خلاصون دی چې د قبر په اړه راغلي. که د قبر د عذابونو په هکله بحث کوو شاید په لس گونو پاڼو یې هم سرته ونه رسوو. خو یواځې شهید دی چې د قبر له عذابه هم خلاص دی: عن المقداد بن معدیکرب قال: قال رسول الله صلی الله علیه و سلم: لِلشَّهِيْدِ عِنْدَ الله سِتَّ خِصَالٍ يُغْفَرُ لَهُ فِيْ أَوَّلِ دَفْعَةٍ وَ يَرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَ يُجَارُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَ يَأْمَنُ مِنَ الْفَزَعِ الْأَكْبَرِ وَ يُوْضَعُ عَلَى رَأْسِهِ تَاجُ الْوَقَارِ اَلْيَاقُوْتَةُ مِنْهَا خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَ مَا فِيْهَا وَ يُزَوَّجُ اِثْنَتَيْنِ وَ سَبْعِيْنَ زَوْجَةً مِنَ الْحُوْرِ الْعِيْنِ وَ يُشَفَّعُ فِيْ سَبْعِيْنَ مِنْ أَقَارِبِهِ. [٢٩]

ژباړه: له مقداد بن معدیکرب رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: د شهید لپاره د الله په وړاندې شپږ خصلتونه دي. د وینې د بهېدو په اول څاڅکي ورته ښښنه کیږي، په جنت کې خپل ځای ویني، د قبر له عذاب څخه به محفوظ وي، له لویې وېرې (د قیامت) څخه به محفوظ وي، د وقار تاج به یې په سر کېښودل شي داسې چې یو یاقوت یې تر ټولې دنیا او د هغې تر شتمۍ بهتر دی. د جنت له حورو څخه به یې له دوه اویا حورو سره واده وشي. د خپلو خپلوانو څخه به د اویاوو کسانو شفاعت کوي.

د برزخ د ژوند لپاره د شهید څکه هېڅ تشویش نشته چې د شهادت په اول څاڅکي ټول گناهونه ورته وښل شي، په جنت کې خپل ځای ووینې؛ نور نو څه غواړي؟!

### ۳-: د شهید د آخرت ژوند

په جنت کې د شهید ژوند تر هر چا پورته دی، یواځې انبیاء کرام به د خپل نبوت په درجې سره تر شهید لوړ وي. شهید سره چې په آخرت کې د کومو شیانو

---

[٢٩](الترمذي/بَابٌ فِي ثَوَابِ الشَّهِيدِ/رقم الحديث: ١٦٦٣)

وعده شوې ده، شمېرل يې بيخي نا ممکن دي. يواځې د مثال په توګه لکه پورته حديث کې چې ذکر شول: داسې ياقوتي تاج چې يو ياقوت يې تر ټولې دنيا لوړ قيمت لري، دوه اويا حورې، او د اوياوو خپلوانو شفاعت...

الله تعالی فرمايلي چې شهيد مړ مه بولئ، چې الله تعالی يې مړه نه ګڼي نو هغه به کوم او څه ډول ژوند وي؟! له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايل: کله چې ستاسو ورونه په احد کې شهيدان شول، الله تعالی يې روحونه د شنو مرغانو په ججورو کې واچول، چې د جنت په نهرونو ګرځېدل، د هغه (جنت) له مېوو څخه يې خوراک کاوه، او راتلل به د سرو زرو هغو قنديلونو ته چې د الله د عرش په سيوري کې ځوړند دي. کله چې هغوی خپل تر ټولو ښه خوراک، ښه څښاک او ښه د آرام ځای وموند، نو (خپل منځ کې يې) وويل: زمونږ ورونو ته به زمونږ دا خبر څوک ورسوي چې مونږ ژوندي يو او په جنت کې رزق تر لاسه کوو؛ څو په جهاد کې بې رغبتي ونه کړي، او د جنګ په وخت کې سست نه شي. نو الله سبحانه وفرمايل: ستاسو دا خبر زه ور رسوم، نو دا آيتونه يې نازل کړل:

**وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ الله أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ (١٦٩) فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ الله مِن فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِم مِّنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ (١٧٠) يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ الله وَفَضْلٍ وَأَنَّ الله لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِين (١٧١) "آل عمران"**

ژباړه: «او له سره ګومان مه کوئ (ای محمده يا ای سامعه!) پر هغو کسانو چې وژل شوي دي دوی په لاره د الله (جهاد او طاعت) کې د مړو (مړه نه دي)، بلکې ژوندي دي په نزد د رب خپل رزق ورته ورکول کيږي (له جنتي مأکولاتو او مشروباتو څخه) په دې حال کې چې خوشحاله دي دوی په هغه شي باندې چې ورکړی دی دوی ته الله له فضله خپله او خوشحاليږي دوی (په راتلو د) هغو کسانو باندې چې لا نه دي رسيدلي دوی تر هغو پورې وروسته د دوی نه په دې شان سره

چې نه به وي (هيڅ قسم) ويره په دوی باندې او نه به دوی (هيچيري) غمجن کيږي (د ثواب په نقصان سره) خوشحاليږي دوی په نعمت سره له (جانبـه د) اللّـه او (د ده په) فضل سره او (په دې سره چې) بېشکه اللّٰه نه ضائع کـوي اجـر د مؤمنـانو (بلکـې پوره يې ورکوي) ».

همدا راز د شهيدانو د کورونو په هکله رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه و سلم فرمايي: ما په جنت کې داسې يو ښايسته کور وليد چې هېڅکله مې داسې ښايسته کـور نـه و ليدلی، نو راته وويل شول: اَمَّا هَذِهِ الدَّارُ فَدَارُ الشُّهَدَاءِ. يعنې: دا کور د شهيدانو کور دی.

که له هر څه سترګې پټې کړو: له انس بن مالک رضي اللّـه عنـه څخـه روايـت دی چې نبي کريم صلی اللّٰه عليه و سلم وفرمايل: مَـا أَحَـدٌ يَـدْخُلُ الْجَنَّـةَ يُحِـبُّ أَنْ يَّرْجِعَ اِلَى الدُّنْيَا وَ لَهُ مَا عَلَى الْأَرْضِ مِنْ شَيْءٍ اِلَّا الشَّـهِيْد يَتَمَـنَّى أَنْ يَّرْجِـعَ اِلَى الدُّنْيَـا فَيُقْتَلَ عَـشْرَ مَرَّاتٍ لِمَا يَرَى مِنْ الْكَرَامَةِ[٣٠] يعنې: داسې څوک نشته چې جنـت تـه داخل شي او بيا دې دا خوښه کړي چې دنيـا تـه لاړ شي او پـه ځمکـه کـې دې يـې کوم شي ته اړتيا وي، پرته له شهيد څخه؛ چې دا تمنا به کوي چې دنيا ته لاړ شي، او لس وار ووژل شي، د هغه عزت له امله چې شهيد يې ويني.

کله چې په جنت کې يو څوک د شهادت تمنا کوي نو ولې په ژوند کـې ځـان ورته ونه رسوو؟؟

شهادت هغه نعمت دی چې په جنت کې هم نه پيدا کيږي.

د اللّٰه تعالی د لقاء تصور او بيا هم له شهادت څخه تېښته؟؟؟

---

[٣٠](صحيح البخاري/ بَابُ تَمَنِّي الْمُجَاهِدِ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا/ رقم الحديث: ٢٨١٧/ وأخرجه مسلم في الإمارة باب فضل الشهادة في سبيل الله تعالى رقم ١٨٧٧.)

# د الله تعالی لخوا مجاهدينو سره د نصرت اسباب

الله تعالی له مجاهدينو سره د نصرت وعده کړې ده، الله تعالی فرمايي: وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ. (الروم ٤٧) يعني: «او دی حق (تفضلا) پـه مـوږ نصرت د مؤمنانو». د الله تعالی وعده هېڅکله هم دروغ نشي کېدلی خو بيا هم موږ وينو چې دښمن په مجاهدينو کاميابېږي او ډېر کله ظاهري برى هـم د دښـمن بريښـي. د اللّـه تعالی وعده دروغ نه ده خو که موږ ځانونه د اللّـه تعـالی نصرت تـه برابـر کـړو اللّـه تعالی به راسره نصرت وکړي او که موږ د الله د نصرت لپاره ځانونه برابر نـه کـړو نـو الله تعالی هم راسره نصرت نه کوي.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم په ژوند کې هم کله چې د بدر په غـزا کـې د الله تعالی نصرت وو نو ٣١٣ کسان د زرو جنګياليو په مقابل کې ثابت قدمه ول، خو په حنين کې چې کله د الله تعالی نصرت په عارضي توګه لرې شـو، نـو بيـا دوولـس زره صحابه کرام هم د جګړې له ډګره پر شاه شول.

په دې ځای کې همدا واضحول غـواړم چـې کـه د نصـرت اسـباب مـوږ برابـر کړي ول نو الله تعالی به راسره نصرت وکړي:

**١-: الله تعالی ته زارۍ او دعا کول**

مجاهد بايد د نصرت لپاره الله تعالی ته زارۍ وکـړي. يـواځې اللّـه تعـالی هغـه ذات دی چې په رښتيني توګه نصرت کولی شي. اللّـه تعـالی فرمـايي: إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُم بِأَلْفٍ مِّنَ الْمَلَآئِكَةِ مُرْدِفِينَ. (الانفـال/٩) ژبـاړه: «يـاد کړئ هغه وخت چې استغاثه به کوله تاسي رب خپل ته، نو الله در ورسيده له پـاره د (فرياد) ستاسي چې بېشکه زه مرسته کوونکی يم له تاسي سره په زرو تنـو لـه پرښـتو ځني يوه په بلې پسې راتلونکې».

عملا هغه حالت چې ما پخپلو سترګو لیدلی دی: کله مو چې لـه جهـادي کـار څخه وړاندې په رښـتینې توګـه اللّـه تعـالی تـه زاری کـړي دي، د اللّـه تعـالی دومـره نصرت مو ملګری شوی چې په زرګونو انسانان یې هم نشي کولی.

**٢-: د صف یووالی او له اختلاف څخه ځان ساتل**

اللّه تعالی فرمایي: إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفّاً كَأَنَّهُم بُنيَانٌ مَّرْصُوصٌ. (الصف/ ٤)

ژباړه: «بېشکه اللّه (مدد ورکوي) خوښوي هغـه کسـان چـې جنـګ کـوي پـه لاره (د دین) د دغه (اللّه) کې صف تړونکي ګواکي دوه بناګانې په قلعې سره ټینګې کړی شوې (ښې محکمې یا لکه د اوسپني او یو مضبوط دېوال په شان)».

**٣-: مؤمنان په قتال باندې تحریضول**

د صحابه کرامو رضوان اللّه علیهم اجمعین ایمان تر هر مجاهد لوړ وو، خو بیـا هم کله چې د بدر په غزا کې د مشرکینو لښکر مخکې راشي نو رسول اللّه صلی اللّـه علیه وسلم ورته تحریض کوي او فرمایي: قُوْمُوا اِلَى جَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّـمَوَاتُ وَالْاَرْضُ. ترجمه: (ولاړ شئ د هغه جنت په لوري چې پلن والی یې د اسمانونو او ځمکـې پـه اندازه دی) نو مجاهد باید هېڅکله دا فکر ونه کړي چې زه او یا هم زما ملګري پوره تحریض دي او تحریض ته اړتیا نه لري، بلکې د همېش لپاره مجاهدینو ته تحریض حتمي دی او دا د نصرت یو ستر دلیل دی، اللّه تعالی فرمایي:

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ إِن يَكُن مِّنكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُواْ مِئَتَيْنِ وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّئَةٌ يَغْلِبُواْ أَلْفاً مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُواْ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لاَّ يَفْقَهُونَ. (الانفال/ ٦٥)

ژباړه: «ای نبي تیز کړه (ترغیب ورکړه) مؤمنانو ته پر جنګ (د کفارو)، کـه وو له تاسي ځني شل تنه صابران (ثابت قدمان) نو غلبه دي وکړي پر دوو سـوو کـافرانو (یعني داسي جنګ دي وکړي چې نتیجه یـې فـتح او غلبـه کیـدای شي)، کـه وو لـه

تاسي څني سل تنه (صابران ثابت قدمان) نو غالب دي شي پر زرو تنو له هغو کسانو چې کافران شوي دي په سبب د دوی چې بېشکه دوی (داسي) قوم دی چې نه پوهيږي (يعني جاهلان دي په الله او په قيامت) ».

**۴-: په هره خبره او کار کې پوره راز ساتل، مهمې خبرې د خبرو اهل ته پرېښودل**

الله تعالى په هغه وخت کې له مجاهدينو سره ډېر نصرت کوي چې کله هغوی پخپلو کارونو کې پوره د راز ساتلو خيال وساتي. د راز په هکله مهمې خبرې مو پخپل ځای کې بيان کړې خو الله تعالى فرمايي: وَإِذَا جَآءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُواْ بِهِ وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَى أُوْلِي الأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ مِنْهُمْ. (النساء/ ۸۳)ژباړه: «او کله چې راشي دوی (منافقانو) ته کوم امر (خبره) له امن (نصرت) يا (کوم خبر له) ويري (هزيمت) نو مشهوروي دوی هغه (خبر) او که دوی ور رسولی او پرېيښی وی دا خبر (طرف د) رسول د الله ته او (طرف) د حاکمانو خپلو ته له دوی نه، نو خامخا معلوم به وی، (تدبير) د دې کار هغو کسانو ته چې ايستلی (او بېلولی شي ښه له بدو) له دوی څني (رسول الله او امراء، نو تحقيق به يې شوی وي) ».

له دې آيت څخه معلوميږي چې که مونږ غواړو چې الله تعالى راسره نصرت وکړي نو بايد هره خبره په خپل سر نشر نه کړو، مشرانو ته يې پرېږدو او په کومه طريقه چې مشران راته خبره کوي په همغه توگه يې د راز ساتلو خيال وساتو.

۵-: له الله تعالى څخه وېره او د خپلو اعمالو اصلاح کول

مجاهد بايد هېڅکله دا فکر ونه کړي چې بس ما ته خو په شهادت سره ټول گناهونه ښښل کيږي، نو که زه هر څه وکړم مشکل نشته. په پيل کې مو وويل چې مجاهد چې د مقربيت دعوه کوي بايد عملا ځان مقرب هم وگرځوي. ابودرداء رضي الله عنه فرمايي چې: اِنَّمَا تُقَاتِلُوْنَ بِاَعْمَالِكُمْ. يعنې: تاسو په خپلو اعمالو

جنګیږئ! که زمونږ اعمال برابر ول، الله تعالی به مو نصرت وکړي او که مو اعمال برابر نه ول، نو بیا د نصرت تمه کول د ځان تېر ایستل دي.

### ٦-: د جنګ پر مهال ثابت قدمي او د الله تعالی ذکر کول

د جنګ پر مهال د لویې مخابرې مسئول دا مسئولیت لري چې په هر حال کې له خپل مرکز او امیر سره رابطه وکړي او که کوم شي ته اړتیا پېښېږي باید په عاجله توګه غوښتنه ترېنه وکړي. د مجاهدینو لپاره د الله تعالی ذکر کول ډېر مهم او ګټور دی او باید چې د کمزورۍ او د فتحې په ټولو حالاتو کې د الله تعالی ذکر هېر نه کړي. همدا راز د الله تعالی ذکر کول د ثابت قدمۍ لپاره لوی سبب دی. الله تعالی فرمايي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُواْ وَاذْكُرُواْ اللّهَ كَثِيراً لَّعَلَّكُمْ تُفْلَحُونَ.

(الانفال/ ۴۵) ژباړه: «ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو) کله چې مخامخ شئ له کوم پوځ (د دښمن) سره (چې جنګ درسره کوي) نو ثابت قدم اوسئ تاسي (او مه ترې تښتئ) او یادوئ تاسي الله ډېر (په خوله او زړه) ښایې چې تاسي په مراد ورسیږئ (په بري سره پر دښمن د ذکر په برکت). »

مجاهدینو ورونو! که غواړئ چې د الله تعالی نصرت درسره همېشه مل وي، نو د الله تعالی ذکر ډېر زیات کوئ!

### ۷-: د ستړیا احساس ته شکست ورکول

الله تعالی فرمايي: وَلَا تَهِنُوا فِي ابْتِغَاءِ الْقَوْمِ إِنْ تَكُونُوا تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ وَتَرْجُونَ مِنَ اللهِ مَا لَا يَرْجُونَ. (النساء/ ۱۰۴) ژباړه: « او سستي (بې همتي ای مؤمنانو) مه کوئ! په طلب (تعقیب او جنګ) د قوم د کفارو کې، که یئ تاسي چې دردمن کیږئ نو بېشکه دوی (هم) دردمن کیږي هماغسي چې تاسي دردمن کیږئ، او هیله او امید لرئ تاسي (له جانبه د) الله د هغه (ثواب) چې نه لري دوی (کفار) امید یې او دی الله (په هر شي) ښه عالم ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي) ».

د الله د نصرت لپاره لازمه ده چې د سستۍ او ستړیا احساس ته مـاتې ورکـړو، هېڅکله خپل عزم کمزوری نه کړو. په الله تعالی مو ایمان دی چې فتحـه آخـر هـم زمونږ ده، که څه هم ظاهري بڼه کې مو دښمنان راباندې غالب ښکاري.

## ۸-: خپل پوره تیاری، تدبیر او اسباب برابرول، او احتیاط کول

د الله تعالی لخوا د اعداد او تیاري امر: **وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ**... (الانفال/٦٠) یعنی: «او تیاروئ (ای مؤمنانو) لپـاره (د جنـګ) د دغـو (ماتوونکو دعهد یا مطلق کفارو) څومره چې توانیږئ (جمع کولای شـئ) تـاسي لـه قوت (اسبابو د جنګ) او له روزل شوو ساتل شوو آسونو (لپاره د جهاد)».

اعداد د نصرت مخالف نه، بلکې د همدې نصرت لپاره سـبب دی. مـونږ بایـد خپل ټول اسباب برابر کړو، کوم څه چې مو په وس کې نشته له الله تعالی څخـه یـې غوښتنه وکړو او پر لوی الله توکل وکړو.

احتیاط کول د ډار معنا نه لري، بلکې دا هغه بیداري او تکتیک دی چـې مـونږ یې په وسیله کولی شو چې خپل دښمن ته شکست ورکړو او خپل ځان او ملګري د دښمن له ضرر څخه وساتو: **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا خُذُوا حِذْرَكُمْ فَانْفِرُوا ثُبَاتٍ أَوِ انْفِرُوا جَمِيعاً**. (النساء/۷۱) ژباړه: « ای هغو کسانو چې ایـمان یـې راوړی دی (ای مؤمنـانو) واخلئ تاسي وسلې خپلې (یـا ځـان لـه کفـارو وسـاتئ او ورتـه هوښـیار اوسـئ) بیـا ووځئ تاسي (غزا ته) ډلې ډلې (جلاجلا) پوځ) یا ووځئ تاسي ګـرد (ټـول) سره یـو ځای ».

## ۹-: مؤمنانو سره نرمي کول، د ضعیفو او مظلومو خلکو خیال ساتل

که د الله تعالی نصرت غواړو، نو پکـار ده چـې لـه مؤمنـانو سره هغسي-نرمـي وکړو لکه رسول الله صلی الله علیـه وسـلم چـې کـړې ده او پـه دې اړه یـې مـونږ تـه زرینې لارښوونې پرې ایښي دي، الله تعالی د رښتینو مجاهدینو صفت بیانوي:

أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ الله وَلاَ يَخَافُونَ لَوْمَةَ لائم. (المائده/ ۵۴) ژباړه: «متواضع او مهربان به وي پر مؤمنانو غالب زبردست به وي پر کافرانو باندې، جهاد به کوي دوی په لاره د الله کې (له پاره د ترقی د دین) او نه به ویریږي دوی له ملامتیا د هیڅ ملامت کوونکي».

د مجاهد دا صفت دی چې بايد له مؤمنانو سره نرمي کوونکی وي او په همدې باندې الله تعالی نصرت کوي. ځکه رسول الله صلی الله علیه و سلم فرمايي: هَلْ تُنْصَرُوْنَ وَ تُرْزَقُوْنَ اِلَّا بِضُعَفَائِكُمْ. يعنې: تاسو ته ستاسو د کمزوريو خلکو په روی سره نصرت او رزق درکول کيږي.

که مو د الله تعالی نصرت ته تمه وي نو خپل مظلوم ولس، کمزوري عام مؤمنان، بنديان او د بنديانو کورنۍ، د شهيدانو کورنۍ او يتيمان مو بايد هېر نه وي او له شفقت څخه مو بايد محروم نه وي.

* * *

## د جهاد په لار کې مصرف کول

د جهاد في سبیل الله په موضوع کې باید د الله جل جلاله د هغه نعمت یادونه هم وکړو چې: الله تعالی د جهاد في سبیل الله په لار کې مصرف کوونکي ته تر بل هر چا ډېر اجر ورکوي:

مَّثَلُ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنبُلَةٍ مِّئَةُ حَبَّةٍ وَاللهُ يُضَاعِفُ لِمَن يَشَاءُ وَاللهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ. (البقره/۲۶۱)

ژباړه: «مثال (صفت د نفقې او ورکړې) دهغو کسانو چې صرفوي مالونـه خپـل په لاره د الله (په جهاد او نورو عبادتونو) کې په مثل د یوې دانې (دتخـم) دی چـې زرغونه کړې دا (دانه) اوه وږي په هـر یـوه وږي کـې سـل (سـل) دانـې وي، او اللـه زیاتوي (اجر) د پاره د هغه چاه چې اراده وکړي (اجـر د زیـاتولو) او اللـه پـراخ دی (احسان، فضل او رحمت دده) ښه عالم دی (په ټولو احوالو) ».

پورته ذکر شوی آیت د هغو مؤمنانو لپاره ډېر لوی زېری دی چې الله تعـالی د مال په نعمت نازولي دي.

الله تعالی په هر نېک عمل کې مصرف کوونکي ته اجـر ورکـوي، مـثلا د اللـه تعالی کور یعنې جومات جوړول ډېر اجر لري، له محتـاج مـؤمن سره مـالي کومـک ډیر اجر لري، خو الله تعالی د جهاد په لار کې له مصرف کوونکي سره د داسې اجر وعده کړې ده چې له بل هېچا سره یې نه ده کړې؛ یعنـې: اوه سـوه برابـره اجـر ؟؟؟ د هېچا لپاره هم نه دی بیان شوی یواځې د هغه کس لپاره دی چې د جهاد په لار کـې مصرف کوي.

آیا د الله جل جلاله لخوا د یوې نیکۍ په عوض کې اوه سوه برابره او یا هـم د دې دوه چنده یعنې څوارلس سوه برابره بدل نه غواړې؟؟؟! نـو راشـئ او د جهـاد پـه لاره کې خپل مالونه مصرف کړئ!

* * *

# مجاهدینو ته درې نبوي لارښوونې

**لومړۍ لارښوونه:**

**په جهاد کې چاته تکلیف نه رسول**

د الله په لاره کې د جهاد کولو بشپړ احکام د الله تعالی او د رسول اللّـه صـلی الله علیه وسلم له لوري بیان شوي دي. هغه خبرې چې تـر ټولـو ډېرې مهمې وې، مونږ پکې خپل کوښښ وکړ چې څه نا څه یې بیـان کـړو. خـو د جهـاد پـه اړه درې احادیث داسې ول چې ما غوښتل مجاهدینو ملګرو ته یې په خصـوصي شـکل سره بیان کړم.

لومړی حدیث په جهاد کې چاته د تکلیف نه رسولو موضوع ده. د کم علمـۍ له امله ډېر کله د مجاهدینو له نامه په استفادې او یا هم د کشرانو ملګرو له خوا عامو مسلمانانو ته داسې تکلیف ورکول کیږي چې هغوی پرې ډېـر ځـوریږي او مجاهـد بیا ځان ځکه ملامت نه ګڼي چې زه خو مجاهد یم. لـه معـاذ بـن انـس جهنـي رضي الله عنه څخه روایت دی چې: غَزَوْتُ مَعَ نَبِيِّ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَـلَّمَ غَـزْوَةَ كَـذَا وَكَذَا، فَضَيَّقَ النَّاسُ الْمَنَازِلَ، وَقَطَعُوا الطَّرِيقَ، فَبَعَثَ نَبِيُّ الله صَـلَّى الله عَلَيْـهِ وَسَـلَّمَ مُنَادِيًا يُنَادِي فِي النَّاسِ: أَنَّ مَنْ ضَيَّقَ مَنْزِلًا أَوْ قَطَعَ طَرِيقًا فَلَا جِهَادَ لَهُ[۳۱]. ژباړه: ما له رسول الله صلی الله علیه و سلم سره دغه دغه غزاګانې وکړې. خلکـو ځایونـه تنـګ کړل او لارې یې بندې کړې. رسول الله صلی الله علیه و سلم یو کس ولیږلو هغه پـه خلکو کې چیغې کړې: چا چې ځایونه تنګ کـړل او لارې یـې بنـدې کـړې د هغـه جهاد نشته.

[۳۱](سنن ابي داود بَابُ مَا يُؤْمَرُ مِنَ انْضِمَامِ الْعَسْكَرِ وَسَعَتِهِ/ رقم الحديث: ۲٦۲۹)

همدا مضمون په ډېرو احاديثو کې راغلی دی لکه رسول اللّه صلی اللّه عليه وسلم فرمايي چې: مَنْ آذَى مُسْلِمًا فَلَا جِهَادَ لَهُ. يعني: چا چې مسلمانانو ته تکليف ورساوه نو هغه لره جهاد نشته. له دې احاديثو څخه دا خبره په ډاګه ښکاري چې مجاهد بايد نورو مؤمنانو ته له تکليف رسولو څخه ډېره ډډه وکړي، او هېڅکله دا فکر ونه کړو چې زه خو مجاهد يم، او څوک راته څه نشي ويلی. که نن راته څوک څه نشي ويلی نو د اللّٰه جل جلاله په حضور کې به څه ځواب ورکوو؟، خدای مکړه که مو ددغه ډول بې غوريو له امله د جهاد اجر ضائع کړل شي، نو بيا خو هېڅ هم په لاس کې نه لرو.

**دوهمه لارښوونه:**

**د غزا دوه اقسام**

الحمدلله د اللّٰه په لاره کې جهاد ته راوتلي يو، هر رنګه کړاوونه مو د هغه (جل جلاله) د رضا لپاره په ځان منلي، خو له ځان سره بايد د تل لپاره دا فکر ولرو چې خدای مکړه جهاد مو په فساد بدل نشي.

له معاذ ابن جبل رضي اللّٰه عنه څخه روايت دی چې رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه وسلم وفرمايل: الْغَزْوُ غَزْوَانِ: فَأَمَّا مَنِ ابْتَغَى وَجْهَ الله، وَأَطَاعَ الْإِمَامَ، وَأَنْفَقَ الْكَرِيمَةَ، وَيَاسَرَ الشَّرِيكَ، وَاجْتَنَبَ الْفَسَادَ فَإِنَّ نَوْمَهُ وَنُبْهَهُ أَجْرٌ كُلَّهُ. وَأَمَّا مَنْ غَزَا فَخْرًا وَرِيَاءً وَسُمْعَةً، وَعَصَى الْإِمَامَ، وَأَفْسَدَ فِي الْأَرْضِ فَإِنَّهُ لَمْ يَرْجِعْ بِالْكَفَافِ[٣٢]. ژباړه: غزا دوه قسمه ده (لومړی) هغه کس چې د اللّٰه رضا وغواړي، د امير اطاعت وکړي، خپل د خوښې شی نفقه او مصرف کړي، له خپل شريک سره آساني وکړي، او له فساد څخه ځان وساتي؛ نو يقينًا د هغه خوب او وينښه ټول هغه لره اجر دی. او هغه کس چې غزا کوي، د فخر، ځان ښوونې او سمعت لپاره، د امير نا فرماني کوي، او په

---

[٣٢](ابوداود/ بَابٌ فِي مَنْ يَغْزُو وَيَلْتَمِسُ الدُّنْيَا/ رقم الحديث: ٢٥١٥)

ځمکه کې فساد کوي؛ نو یقینًا چې هغه بـه پـه کفـاف (یعنـې سر پـه سر هـم) راونـه گرځي.

د رسول الله صلی الله علیه و سلم په دې حدیث کې پوره غور پکـار دی چـې باید زمونږ جهاد داسې جهاد وي چې خوب او ویښه مـو ټـول راتـه اجـر شي، نـه دا چې: هندو سترې، خدای ناراضه...

**دریمه لارښونه:**

**د شهیدانو درې قسمونه**

د جهاد في سبیل اللّـه میـدان تـه راوتـل لـه ځـان سره رنگارنـگ کړاونـه او پـه ځانگړې توگه زخم، زندان او شهادت لري. همدې شهادت پسـې ځینـې لېـوني وي او ځینې بیا ترې تښتي. خو راځئ له ځـــان سره فـــکر وکړو او له لانـــدې تـش په نامـه شهــیدانو ځان وساتو!

عَنْ عُتْبَةَ بْنِ عَبْدٍ السُّلَمِيِّ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُـولُ الله صَـلَّى الله عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ: الْقَتْلَى ثَلَاثَةٌ: مُؤْمِنٌ جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فِي سَبِيلِ الله، إِذَا لَقِيَ الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَـتَّى قُتِلَ. قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِ: فَذَلِكَ الشَّهِيدُ الْمُمْتَحَنُ فِي خَيْمَةِ الله تَحْـتَ عَرْشِهِ، لَا يَفْضُلُهُ النَّبِيُّونَ إِلَّا بِدَرَجَةِ النُّبُوَّةِ. وَمُؤْمِنٌ خَلَطَ عَمَلًا صَـالِحًا وَآخَـرَ سَـيِّئًا، جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فِي سَبِيلِ الله، إِذَا لَقِيَ الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَتَّى يُقْتَلَ. قَالَ النَّـبِيُّ صَـلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِ: مُمَصْمِصَةٌ مَحَتْ ذُنُوبَهُ وَخَطَايَاهُ، إِنَّ السَّيْفَ مَحَّـاءٌ لِلْخَطَايَـا، وَأُدْخِـلَ مِنْ أَيِّ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ شَاءَ. وَمُنَافِقٌ جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ، فَإِذَا لَقِيَ الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَتَّى يُقْتَلَ، فَذَاكَ فِي النَّارِ، إِنَّ السَّيْفَ لَا يَمْحُو النِّفَاقَ. [۳۳]

[۳۳](سنن الدارمي/ بَابٌ فِي صِفَةِ الْقَتْلَى فِي سَبِيلِ اللَّهِ/ رقم الحدیث: ۲۴۵۵)

ژباړه: له عتبه ابن عبد سلمي رضي الله عنه څخه روايت دی، چې رسول اللّه صلی اللّه علیه و سلم وفرمايل: قتل شوي درې قسمه دي. يو هغه مؤمن دی چې پخپل نفس او مال سره د اللّه په لار کې جهاد کوي تر دې چې له دښمن سره مخامخ شي، تر هغه وجنګيږي تر څو چې ووژل شي؛ رسول اللّه صلی اللّه علیه و سلم د دې په هکله وفرمايل: همدا هغه کامیاب شوی شهید دی چې د اللّه تعالی په خيمه کې د اللّه د عرش لاندې دی. انبياء علیهم السلام صرف د نبوت په درجه کې له دوی پورته دي.

دوهم هغه مؤمن دی چې يو ښه او بل خراب عمل وکړي، پخپل نفس او مال سره د اللّه په لار کې جهاد کوي تر دې چې له دښمن سره مخامخ شي، تر هغه وجنګيږي تر څو چې ووژل شي؛ رسول اللّه صلی اللّه علیه و سلم د دې په هکله وفرمايل: دا هغه ممصمصة (پاک کړی شوی) دی چې ګناهونه او خطاوې يې عفوه شوې، يقيناً توره د خطاوو محوه کوونکې ده او د جنت له هرې دروازې چې غواړي ور دننه به شي.

دريم هغه منافق دی چې پخپل نفس او مال سره جهاد کوي، کله چې له دښمن سره مخامخ شي تر هغه وجنګيږي تر څو چې ووژل شي نو دا په اور کې ده. يقيناً توره نفاق نشي محوه کولی.

د رسول اللّه صلی اللّه علیه و سلم په دې وينا کې چې غور وشي نو رامعلومه به شي چې تېر شوي ګناهونه به ان شاءاللّه د اللّه لخوا راته عفوه شي، خو له داسې اعمالو څخه ضرور بايد ځان وساتو چې زمونږ د نفاق سبب کيږي او يا مو له منافقينو سره د ملګرتيا سبب ګرځي.

* * *

# دریم باب:

# د مجاهدینو جهادي صفات

## په جهاد کې د اطاعت اهمیت

الله تبارک و تعالی چې د کومو عباداتو د کولو امر کړی نو د هغه لپاره یې ځانګړي احکام او لارښوونې هم رالېږلي دي، د بېلګې په توګه الله تعالی د لمانځه امر کړی خو ورسره یې دا حکم هم کړی چې د لمانځه د کولو لپاره د ځان پاکول شرط دي او په دې باندې د ټول امت اتفاق دی چې که کوم کس په ناپاکه بدن لمونځ وکړي نو دغه لمونځ یې صحیح نه دی او باید بیا یې وکړي. همدا رنګه د الله په لاره کې جهاد کول د الله تعالی یو امر دی، او الله تعالی یې په هکله ډېر احکام صادر کړي دي چې رسول الله صلی اللّه علیه وسلم عملاً او قولاً خپل امت ته رسولي دي.

خبره دا ده چې د جهاد في سبیل الله لپاره د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د الله تعالی په ټولو احکامو کې مهم حکم د امیر اطاعت دی، او لامل یې همدا دی چې له اطاعت پرته جهاد جهاد نه شمېرل کیږي، بلکې صرف یو جنګ دی چې الله تعالی پرې اجر هم نه ورکوي.

۱- په جهاد کې اطاعت ولې مهم دی؟!

۲- په کومو حالاتو کې به د امیر اطاعت کیږي؟!

۳- د چا اطاعت مهم دی؟!

۴- د امیر د اطاعت په نه کولو باندې د کومو سزاوو وعید بیان شوی؟!

۵- د اطاعت په هکله څو مشهورې او غلطې مسئلې

نو لومړی باید دا ووایم چې په جهاد کې اطاعت هغه اساسي رکن دی چې د اطاعت له کولو پرته جهاد ته جهاد نه ویل کیږي، په حقیقت کې جهاد اطاعت ته ویل کیږي، ځکه که چېرته کوم امیر یو مجاهد ته امر وکړي چې ته صرف دلته انتظار شه! او د هغه بل مجاهد ملګری د کفارو وژلو ته ولاړ شي، نو د اللّه جل

جلاله په وړاندې به د دواړو اجرونه یو شان وي، خو که یو مجاهد د کفارو وژلو تـه دامیر د امر په خلاف ولاړ شي نو هېڅ به هم ورته الله تعالی قبول نه کړي.

الله تعالی فرمايي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ. (النساء/۵۹)

ژباړه: «ای هغو کسانو چې ایـمان یـې راوړی دی (ای مؤمنـانو) حکـم ومنـئ تاسي د الله او حکم ومنئ تاسي د رسول د الله او حکـم ومنـئ تـاسي د خاونـدانو د حکم له تاسي (مسلمانانو یعني حاکمانو او مشرانو)».

نو لومړی خبره همدا ده چې اطاعت ځکه مهـم دی چـې دا د اللّـه تعـالی امـر دی او د یو مجاهد لپاره تر ټولو مهمه خبره همدا ده چې الله تعـالی ورتـه امـر کـړی چې د خپل امیر اطاعت وکړه! نو هغه به یې څنګه نه کوي؟!

دوهمه خبره داده چې د امیر اطاعت به تر کومه وخته کیږي؟! یعنې هغـه کـوم حالتونه دي چې د امیر له اطاعت نه مجاهد پکې خلاصېدلی شي؟! رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: السَّمْعُ وَالطَّاعَةُ حَقٌّ مَا لَمْ يُؤْمَرْ بِالْمَعْصِيَةِ، فَإِذَا أُمِـرَ بِمَعْصِـيَةٍ فَلَا سَمْعَ وَلَا طَاعَةَ [٣٤] یعنې: د امیر د حکم اورېدل او د هغه منل حق او لازم دي تـر څو چې یې د ګناه امر نه وي کړی، کله چې د ګناه کولو امر ورته وشو، بیا نه د امر د امر اورېدل شته او نه هم اطاعت.

همدا راز له علي رضي الله عنه څخه روایت دی، چې وايي: رسـول اللّـه صـلی الله علیه و سلم یوه سریه ولېږله، او د انصـارو یـو کـس یـې پـرې امیـر مقـرر کـړ، او هغوی (د سریې کسانو) ته یې امر وکړ چې د دې امیر اطاعت وکـړئ! (پـه لار کـې) امیر په هغوی غوسه شو، او ویې ویل: آیا رسول الله صلی الله علیه و سـلم تاسـو تـه امر نه و کړی چې زما اطاعت وکړئ؟ هغوی وویل: ولې نه! نو هغـه وویـل: پـه تاسـو مې دا لازمه کړه چې لرګي راټول کړئ! اور بل کړئ! او بیا پکې دننه شئ! نو هغـوی

[٣٤](البخاري/ بَابُ السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ لِلْإِمَامِ/ رقم الحديث: ٢٩٥٥)

لرګي راټول کړل، اور يې بل کړ او کله يې چې د داخليدلو قصد وکړ، نو تم شـول او يو بل ته يې کتل، دوی په همدې خبرو کې ول، چې اور مړاوی شو او د امير غوسـه هم سړه شوه. دا قصه نبي کريم صلی الله عليه و سـلم تـه وشـوه، هغـه وفرمايـل: کـه دوی وردننه شوي وی، هيڅکله به ترينه نه وو وتلي؛ يقينًا اطاعت په معروف (غير له ګناه څخه نورو شيانو) کې دی.

مجاهد بايد پدې وپوهيږي چې د امير له امر څخه سر غړاوی ورته يـواځې پـه هغه حالت کې جايز دی چې کله امير ورته د ګناه کولو امر وکړي، لدې پرته په هيڅ حالت کې هم د امير د حکم نه منل ورته روا نه دي.

که امير يو مجاهد له کوم نفلي عبادت څخه منع کړي، دې مجاهد ته جـائز نـه دي چې هغه نفلي عبـادت وکـړي، او بلـه دا چـې د اميـر د کـومې غلطـی لـه املـه د اطاعت پريښودل جايز نه دي. څکه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايي:

مَنْ رَأَى مِنْ أَمِيرِهِ شَيْئًا يَكْرَهُهُ فَلْيَصْبِرْ عَلَيْهِ؛ فَإِنَّهُ مَـنْ فَـارَقَ الْجَمَاعَـةَ شِـبْرًا فَمَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً (البخاري) ژباړه: څوک چـې لـه خپـل اميـر نـه داسـې يـو شـی ويني چې دی يې نه خوښوي، نو په هغه دې صبر وکړي؛ څکـه هغـه کـس چـې د امير د اطاعت کونکو له ټولي څخه د يوې لويشتې په اندازه لرې شي او مـړ شي، نـو دا مرګ يې د جاهليت مرګ دی.

نو بايد له ځان سره فکر وکړو چې ماته رسول الله امـر کـوي چـې د اميـر کـوم کارونه دې چې نه خوښيږي نو صبر پرې وکړه! نو زه به د خپل زړه خبره منم او که د رسول الله ؟؟؟ هو! صرف دومره ده چې که د امير هغه کار چې زما نه خوښـيږي هغـه داسې شرعي مشکل وي چې ټول صف ته يې مشکل راجع کيږي، نو بيا ورتـه ويـل پکار دي، او د پوره امر بالمعروف څخه وروسته بيا مشر امير ته ويل پکار دي.

### دریمه خبره داده چې د چا اطاعت مهم دی؟!

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: اسْمَعُوا وَأَطِيعُوا، وَإِنِ اسْتُعْمِلَ حَبَشِيٌّ كَأَنَّ رَأْسَهُ زَبِيبَةٌ [۳۵] ژباړه: د امیر خبره واورئ! او د هغه اطاعت وکړئ! که څه هم یو حبشي غلام چې سر یې د ممیز په شان وي پر تاسو باندې مقرر کړل شي. نو کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د یوه غلام په اطاعت کولو مونږ ته امر کوي، نو مونږ به د هغه چا اطاعت څنگه نه کوو چې یواځې ماته څان تر هغه لوړ ښکاري؟! نو د مجاهد لپاره مهمه داده چې هر څوک پرې امیر مقرر شو د هغه اطاعت به کوي.

خلاصه داچې د امیر اطاعت کول د رسول الله اطاعت دی او رسول الله اطاعت د الله تعالی اطاعت دی، څکه له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

مَنْ أَطَاعَنِي فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ، وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ عَصَى اللهَ، وَمَنْ أَطَاعَ أَمِيرِي فَقَدْ أَطَاعَنِي، وَمَنْ عَصَى أَمِيرِي فَقَدْ عَصَانِي [۳۶]. یعنې: چا چې زما اطاعت وکړ نو هغه د الله تعالی اطاعت وکړ او چا چې زما نافرماني وکړه نو هغه د الله تعالی نا فرماني وکړه او کوم کس چې زما د امیر اطاعت وکړ نو هغه زما اطاعت وکړ او چا چې زما د امیر نا فرماني وکړه هغه زما بې اطاعتي وکړه.

راځئ له څان سره فکر وکړو! که رسول الله صلی الله علیه وسلم راته په خوب کې د یوه کار امر وکړي نو مونږ به یې څومره په شوق وکړو؟! خو چې کله رسول الله راته په ویښه او په صحیح حدیث کې د امیر د امر د منلو امر کړی نو بیا به یې څنگه نه منو؟!

---

[۳۵] (البخاري / بَابُ إِمَامَةِ العَبْدِ وَالمَوْلَى / رقم الحديث: ۶۹۳)

[۳۶] (بَابُ قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى وَ {أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الأَمْرِ مِنْكُمْ} رقم الحديث: ۷۱۳۷/ و أخرجه مسلم في الإمارة باب وجوب طاعة الأمراء في غير معصية. . رقم ۱۸۳۵)

ځلورمه خبره دا چې د امیر د امر په نه منلو سره الله تعالی د کومو سزاوو وعید بیان کړی؟

لکه څرنګه چې په مخکې حدیث کې تېر شول چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپل امیر بې اطاعتي د خپل ځان بې اطاعتي بولي او د ځان بې اطاعتي د الله تعالی بې اطاعتي بولي، نو له یو مجاهد سره چېرته او څنګه مناسبه وي چې د الله تعالی بې اطاعتي وکړي؟ نو له ځان سره باید فکر وکړو چې د الله تعالی د امر نه منل به کومه پایله ولري؟

د امیر د امر په نه منلو سره د ټول کړي عبادت ثواب ضایع کیږي، ځکه الله تعالی ته هغه عمل قبول دی چې د رسول الله په طریقه وي او چې کله د امیر امر پکې ونه منل شي بیا د رسول الله له طریقې سره نه برابریږي او بیا یې الله تعالی هېڅ اجر هم نه ورکوي (او دا د الله لخوا ظلم نه دی، بلکې د دې نافرماني کوونکي پخپل ځان باندې ظلم دی)

د امیر د امر د منلو له وجې الله تعالی ټول لښکر له شکست سره مخ کوي او بیا هغه د خاصو بندګانو اعمال هم نشي کولی چې دا شکست بند کړي، ځکه الله تعالی فرمایي: وَاتَّقُوا فِتْنَةً لَّا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنكُمْ خَاصَّةً. الایه. (الانفال/ ۲۵) یعنې: «او ځان وساتئ تاسي له هغې فتنې (فساد اوګناه) څخه چې نه رسیږي (عقوبت یې یوازې) همغو کسانو ته چې ظلم یې کړی وي، (په کولو د ګناه سره) له تاسي ځني خاص« او یوازې بلکې عمومي به وي) او پوه شئ چې بېشکه الله سخت دی عذاب (د ده مخالفانو ته په دنیا او عقبا کې)».

لکه څرنګه چې د احد په غزا کې د څو صحابه کرامو د بې اطاعتۍ په نتیجه کې الله تعالی داسې شکست راووست چې حتی د رسول الله غاښ مبارک هم پکې شهید شو، او د افرادو د بې اطاعتۍ له وجې الله تعالی بیا د خپل رسول په روی هم دا شکست ونه ګرځاوه.

په پای کې غواړم څو هغه مسئلې یادې کړم چې په مجاهدینو کې غلطې مشهورې شوې دي.

**۱- هغه خو په جهاد کې زما امیر دی، دغسې په ما څه کار لري؟!**

دا هغه خبره ده چې ډېری مجاهدین یې کوي، خو حقیقت دادی چې کله مونږ کوم امیر ته ځان وسپارو بیا د هغه له اجازې پرته حتی خپل کور ته هم نشو تللی، لکه د ابو سعید خدري رضي الله عنه په اوږده حدیث کې چې د احزابو د غزا په وخت کې یو صحابي یادوي چې نوی واده یې کړی و، کور ته یې اجازه وغوښته او رسول الله صلی الله علیه وسلم له توري سره د تللو اجازه ورکړه... اوږد حدیث دی خو باید وګورو چې صحابي د نبي علیه السلام له اجازې پرته کور ته نه ځي.

همدا راز رسول الله صلی الله علیه وسلم د یوه اوږده حدیث په آخر کې فرمايي: إِنْ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ، وَإِنْ كَانَ فِي السَّاقَةِ كَانَ فِي السَّاقَةِ، إِنِ اسْتَأْذَنَ لَمْ يُؤْذَنْ لَهُ، وَإِنْ شَفَعَ لَمْ يُشَفَّعْ [۳۷]

د مجاهد په صفاتو کې... او که هغه په پیره کې وو نو په پیره کې به وي، او که د لښکر په پای کې و نو د لښکر په پای کې به وي، او که اجازه وغواړي اجازه نه ورکول کیږي او که د چا سپارښتنه وکړي سپارښتنه یې نه منل کیږي.

نو راځئ چې وګورو چې نبي علیه السلام د هغه مجاهد صفت کوي چې دومره یې حیثیت کم وي حتی چې اجازه وغواړي او اجازه نه ورکول کیږي (نو که اجازه غوښتل شرط نه وی په عامو کارونو کې نو بیا به ولې د داسې مجاهد صفت کیده؟)

**- ۲: زما هېڅ خبره نه اوري نو زه یې ولې اطاعت وکړم؟!**

دا هم د هغو بې اطاعتي کوونکو مجاهدینو خبره ده چې د ځان د برائت لپاره یې کاروي، خو له ځان سره فکر وکړئ! ته امیر یې که هغه؟ ته د هغه د امر په منلو

---

[۳۷](البخاري/ بَابُ الحِرَاسَةِ فِي الغَزْوِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ/ رقم الحديث: ۲۸۸٦)

مکلف يې که هغه ستا د خبرې په منلو؟ او که ته وايې چې زما خبره يې وانه ورېدله، نو هغه پورتنی حديث درته بيا راواخلـه چـې: و ان شـفع لم يشـفع. يعنـې: کـه د چـا سپارښتنه وکړي نو سپارښتنه يې هم نه منل کيږي.

همدا راز له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايـت دی: عَـنِ النَّـبِيِّ صَـلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: سَتَكُونُ أَثَرَةٌوَأُمُورٌ تُنْكِرُونَهَا. قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّه، فَمَا تَأْمُرُنَـا؟ قَـالَ: تُؤَدُّونَ الْحَقَّ الَّذِي عَلَيْكُمْ وَتَسْأَلُونَ اللَّه الَّذِي لَكُمْ. (٣٨)

ابن مسعود رضي الله عنه له نبي صلی الله عليه و سلم څخه روايت کوي، چـې ويې فرمايل: ډېر ژر به اثرة (خلک په تاسې باندې غوره ګڼل) او داسـې کارونـه وي چې تاسو به يې بد ګڼئ. هغوی وويل: اې رسول الله صـلی اللّـه عليـه و سـلم نـو تـه مونږ ته څه امر کوې؟ هغه صلی الله عليه و سلم وفرمايل: کوم حق يې چې په تاسـو دی هغه ادا کوئ او کوم حق چې ستاسو دی هغه له الله تعالی څخه غواړئ!

نو د رسول الله صلی الله عليه وسلم په دې وينـا لـږ غـور پکـار دی، کلـه چـې صحابه کرامو ته دا امر کول کيږي چې کوم کسان چـې پـر تاسـو بانـدې هغـوی تـه ترجيح ورکول شي پر همدې باندې هم صـبر کـوئ او د هغـوی حـق (اطاعـت) ادا کړئ! او خپل حق له خدای تعالی څخه وغواړئ! نو کـه نـن زمـا اميـر زمـا خـبره نـه اوري او ما ته ځان په حقه ښکاري، نو په دې بهانـه او يـا وجـه د اطاعـت پرېښـودل جائز نه دي، بلکې که څومره هم امير د خپـل ماتحـت حـق ادا نـه کـړي بيـا بـه هـم مجاهد د امير حق ادا کوي او په کامله معنا به يې اطاعت کوي.

### ٣- زه خو ښه کار کوم نو ولې مې منع کوي؟!

کله نا کله مجاهد دا احساس کوي چې کوم ښه کارونه دي نو په هغه کې بـه د اجازې ضرورت نه وي، خو راځئ وګورو! د احزابو پـه غـزا کـې چـې کلـه عمـر بـن عبدود له خندق څخـه راتېـر شي او د مقـابلې غـږ وکـړي، علـي رضي اللّـه عنـه يـې

(٣٨)(البخاري / بَابُ عَلاَمَاتِ النُّبُوَّةِ فِي الإِسْلاَمِ / رقم الحديث: ٣٦٠٣)

مقابلې ته راځي خو درې واره له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اجازه غـواړي او هغه یې منع کوي، نو آیا د یوه کافر مقابله بد کار دی؟؟ نو چې بد کار نه دی ولې علي رضي الله عنه اجازه غواړي او کله یې چې رسول الله صلی الله علیه وسـلم منـع کوي نو بیا یې ولې خبره مني او نه ورځي؟؟

**۴-: هغه بیا چا مجاهد کړ؟**

کله نا کله هغه مجاهدین چې د شیطان په دام کې راګیر شي، هغه نو بیا دا فکـر کوي چې باید زما امیر خامخا تر ما زوړ مجاهد او تر ما مشر وي. کله کـه مشر۔امیـر پرې داسې کوم کس مقرر کړي چې هغـه تـر نومـوړي وروسـته جهـادي صـف تـه راغلی وي، او یا هم تر هغه کشر وي، نو بیا ورته د هغه اطاعت کول عیـب ښـکاري، خو که مجاهد د الله لپاره جهاد کوي او پخپل امیر یـې پـوره اعـتماد وي، نـو د هغـه لخوا ورته د ټاکل شوي امیر پوره اطاعت پکار دی او هېڅکله باید دا فکر ونه کـړي چې زه تر هغه لوړ او یا د عمر په لحاظ مشر یـم. کـه چېرتـه کـوم عمـومي امیـر کـم صلاحیته کس امیر ټاکي دا به د هغه مسئولیت وي چـې د اللّـه پـه وړانـدې ځـواب ورکړي، خو د الله لخوا نه مجاهد ته په هر حال کې د امیر د اطاعـت حکـم دی، تـر څو یې چې د ګناه امر نه وي کړی.

**۵-: زما غیرت ماته اجازه نه راکوي؟!**

دا هم د مجاهدینو یو شجاعت مندانه قول دی، ښه خبره ده خو دا معنا نه چـې بې اطاعتي پکې وکړي. د حدیبیې د صلحې پر مهال چـې کلـه ابوجنـدل رضي اللّـه عنه په زنځیرونو تړلی او د تېښتې پـه حالـت کـې صـحابه کرامـو تـه راورسـېد، بیرتـه دښمن ته وسپارل شو، آیا د صحابه کرامـو غیـرت دومـره کـم و، چـې نومـوړی یـې نشوی ساتلی؟؟؟ آیا د صحابه کرامو غیرت دا اجـازه ورکولـه؟؟ خـو دا د امیـر د امـر اطاعت و، نو اوس که په مونږ هم هـر رقـم حالـت راشي بایـد د خپـل امیـر اطاعـت وکړو.

او په پای کې دا چې د همېش لپاره باید کوښښ وکړو چې په جهادي صف کې د امیرانو لپاره عذر ولټوو؛ هغه داسې چې: له عباده بن نسي ـ څخه روایت دی چې وایي: د ابودرداء رضي الله عنه له معاویه رضي الله عنه سره څه کار پیدا شو، هغه د څه کار له وجې لږ وځنډاوه، نو د ابودرداء رضي الله عنه په زړه کې څه وګرځېدل، خو بیا یې وویل: څوک چې د سلطان دروازې ته راځي دریږي او کښیني به، او څوک چې کومه بنده دروازه ومومي خامخا به یې څنګ ته خلاصه دروازه هم ومومي، داسې چې که څه ترې وغواړي ورکوي یې او که دعا وکړي قبلوي یې، او د یو کس لومړی نفاق پخپل امیر باندې طعن ویل دي.

سبحان الله! ابودرداء رضي الله عنه له معاویه رضي الله عنه څخه کلونه مخکې ایمان راوړی، خو کله چې هغه رضي الله عنه امیر و او ابودرداء رضي الله عنه یې وځنډاوه، هغه هېڅکله ورپورې طعن نه وایې، بلکې خپل نفس ته خبرې کوي چې د امیر په دروازه کې به کښېني او پاڅېږي به! او بیا خپل نفس ته پخپله وایي چې د انسان د نفاق ابتداء له همدې ده چې پخپل امیر پورې طعن پیل کړي. د صحابه کرامو په هره واقعه باندې پوره فکر کول پکار دي او په ځان داسې عملي کول پکار دي چې که نن زما امیر ما لږ انتظاروي، یا یې هم ملاقات راته په سختۍ پیدا کیږي نو زر تر زره طعن ویل پیل کول ښه نه دي، بلکې لومړی باید ورته عذر ولټوو.

مجاهدینو ورونو! راځئ له ځان سره فکر وکړو! که مونږ د امیر اطاعت ونه کړو نو د هېڅ عمل اجر به الله تعالی رانه کړي.

که غواړئ چې اجر مو خراب نشي، که غواړئ چې جهاد مو له شکست سره مخ نشي، که غواړئ چې زما او ستا له وجې ټول لښکر له ماتې سره مخ نشي ـ، او که غواړو چې د الله په حضور کې په هسکو سترګو ودرېږو! نو راځئ! د خپلو امیرانو پوره اطاعت وکړو!

* * *

# د الله تعالی لپاره محبت کول

د الله لپاره محبت د الله تعالی په هغو نعمتونو کې دی چې د ډېرو لويو اجرونو وعدې يې پرې کړې دي. خو دا هم په مجاهدينو باندې د الله تعالی رحم دی چې د دې اجرونو چاپېريال يې هم تر نورو ډېر مجاهدينو ته برابر کړی دی. ځکه؛ کله چې يو مسلمان پخپله ټولنه کې اوسېږي، خو که له يو چا سره محبت کوي يا به يې خپلوي ورسره وي، يا به يې بله ورځ کوم کار ورته پيدا کيږي، او يا به هم د کليوالۍ د خيال ساتلو په موخه محبت ورسره کوي، خو يواځې د مجاهدينو ماحول هغه دی چې ملګري به د يوې سيمې هم نه وي، د يوې ژبې به هم نه وي او ډېر کله به آن د يوه هېواد هم نه وي، په داسې چاپېريال کې بيا دا څرګنديږي چې د چا محبت د الله لپاره دی او د چا نه دی.

مجاهدين چې کله په يوه مرکز کې اوسيږي بايد په ډېر محبت سره وخت تېر کړي او دا محبت يې هم بايد د الله لپاره وي، ځکه؛ ابوذر رضي اللّه عنه فرمايي چې رسول اللّه صلی اللّه عليه و سلم وفرمايل: أَفْضَلُ الْأَعْمَالِ الْحُبُّ فِي اللَّهِ، وَالْبُغْضُ فِي اللَّهِ [۳۹]. يعنې: تر ټولو افضل عمل د الله لپاره محبت او د الله لپاره بغض دی.

نو څنګه چې مجاهدين تر ټولو بهتر عمل باندې بوخت دي بايد همداسې يې دې بهتر عمل ته هم فکر وي.

**۱-: د الله لپاره محبت د ايماني خوږالي د پيدا کېدلو مهمه ذريعه ده**

دا چې مجاهدين په هېڅ شکل له خپل دريځ څخه نه تېرېږي. يخ، ګرمي، زندان، زنځيرونه، زخمونه، چاپې، او وحشتونه يې له خپل مسير څخه نشي- کړولی،

[۳۹](سنن ابي داود/ بَابُ مُجَانَبَةِ أَهْلِ الْأَهْوَاءِ وَبُغْضِهِمْ/ رقم الحديث: ۴۵۹۹)

اصلي لامل يې له الله تعالى سره محبت دى، اصلي لامل يې د ايمان د خوند څکـل دي، چې د ايمان خوږوالى يې ليدلى او دا خوږوالى په هېڅ صـورت نـه پرېـږدي. د الله لپاره محبت کول يو له هغو اسبابو څخه دى چې الله تعالى پرې خپل بنـده تـه د ايمان خوږوالى وربښي. انس رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسـول اللّـه صـلى الله عليه و سلم وفرمايل: ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ حَـلَاوَةَ الْإِيمَـانِ: أَنْ يَكُـونَ اللهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا، وَأَنْ يُحِبَّ الْمَرْءَ لَا يُحِبُّهُ إِلَّا لِلَّهِ، وَأَنْ يَكْرَهَ أَنْ يَعُودَ فِي الْكُفْرِ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُقْذَفَ فِي النَّارِ[٤٠]. ژباړه: درې داسې شيان دي چې په چا کې وي نو د ايمان خوږوالى به يې نصيب شي؛ ۱- چې الله تعالى او رسول الله صلى الله عليه و سلم تر بل هر چا ورته محبوب وي ۲- له يـو چـا سره خـاص او خـاص دالله تعالى لپاره محبت کوي ۳- بېرته کفر ته گرځېدل دومره بـد وگڼـي لکـه اور تـه چـې غورځول کېږي.

همدا راز ابوهريره رضي الله عنه فرمـايي چـې: أَنَّ رَسُـولَ اللّـه صَـلَّى اللّـه عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَجِدَ طَعْمَ الْإِيمَانِ فَلْيُحِبَّ الْعَبْدَ، لاَ يُحِبُّهُ إِلاَّ لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ. [٤١]

يعنې: رسول الله صلى الله عليه و سلم وفرمايل: څوک چې دا خوښوي چـې د ايمان خوږوالى وڅکي، نـو لـه يـو بنـده سره دې محبـت وکـړي، داسي چـې همـدا محبت يې صرف او صرف د الله جل جلاله لپاره وي.

څرنگه چې رسول الله صلى الله عليه و سلم پـه دې حـديثونو کـې د ايـمان د خوږوالى د موندلو يو لامل د الله لپاره محبت ښودلى، نو مونږ او تاسي دې عمل تـه بايد په درنه سترگه وگورو. مـلا عـلي قـاري رحمـه اللّـه د دې حـديث پـه شرح کـې ليکلي چې: کله د ايمان خوږوالى کوم زړه ته داخل شي بيا هېڅکله ترېنه نه ووځـي او په دې کې د آخرې خاتمې د ساتل کېدلو ستر دليل هم موجود دى.

[٤٠] .(رواه مسلم في الإيمان باب بيان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الإيمان رقم ۴۳)

[٤١] (مسند احمد/ باب مسند ابي هريرة رضي الله عنه/ رقم الحديث: ۷۹٦۸)

**۲-: د الله تعالی لپاره محبت د ایمان د پوره والي او د الله د عرش د سیوري زېرى ورکوي**

ابوامامه رضي الله عنه له رسول الله صلی الله علیه و سلم څخه روایت کوي چې ویې فرمایل: مَنْ أَحَبَّ لِلَّهِ، وَأَبْغَضَ لِلَّهِ، وَأَعْطَى لِلَّهِ، وَمَنَعَ لِلَّهِ؛ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ الْإِيمَانَ.[٤٢] یعنې: چا چې د الله لپاره محبت وکړ، او د الله لپاره یې بغض وکړ، د الله لپاره یې ورکړه وکړه، او د الله لپاره یې منع وکړه نو ایمان یې کامل کړ.

له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل:

إِنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَقُولُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ: أَيْنَ الْمُتَحَابُّونَ لِجَلَالِي؟ الْيَوْمَ أُظِلُّهُمْ فِي ظِلِّي يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلِّي [٤٣]. ژباړه: الله تعالی د محشر په ورځ فرمايي: چېرته دي زما د جلال له امله محبت کوونکي؟؟ نن به یې زه پخپل سیوري (د عرش سیوري) کې سیورى پرې راولم چې زما له سیوري پرته بل سیورى نشته.

همدا راز د ابوهریره رضي الله عنه په یوه بل اوږده روایت کړي حدیث کې راغي چې رسول الله علیه و سلم وفرمایل: چې اوه کسان داسې دي چې په هغه ورځ به الله تعالی د خپل عرش سیوري کې ځای ورکوي چې بل به هېڅ سیورى نه وي، او همدې اوو کسانو کې څلورم هغه ښیي چې: وَرَجُلَانِ تَحَابَّا فِي اللهِ؛ اجْتَمَعَا عَلَيْهِ وَتَفَرَّقَا عَلَيْهِ... (البخاري) او هغه دوه سړي چې د الله لپاره محبت وکړي، د هغه په نامه راټول شي او هغه له امله جدا شي.

د اسلامي امارت په مجاهدینو کې چې کوم محبت شتون لري ښايي د نورې دنیا خلکو ته یواځې یو خیال معلوم شي. ډېر کله د ملګرو جدايي دومره سخته وي چې د خپل مور، پلار، ورونو، او خویندو تر جدايۍ هم پرې ډېر دردېږي، خو د

(٤٢)(سنن ابي داود/ بَابُ الدَّلِيلِ عَلَى زِيَادَةِ الْإِيمَانِ وَنُقْصَانِهِ/ رقم الحديث: ۴۶۸۱)

(٤٣)(صحيح المسلم/ بَابٌ فِي فَضْلِ الْحُبِّ فِي اللهِ/ رقم الحديث: ۲۵۶۶)

همدې ملګرو لپاره دا خبره بایـد وکـړم چـې رسـول اللّـه صـلی اللّـه علیـه و سـلم پـه همدې حدیث کې فرمايي چې: د هغه په نامه راټول شي او د هغه له امله جـدا شي. نو باید دا فکر وکړو چې په جهادي صف کې مو یو ځای کېدل هم د اللّـه لپـاره ول او دا عارضي جدایي مو هم د اللّـه لپـاره ده، ځکـه هغـوی راځخـه د اللّـه د رضـا پـه خاطر ټوټه ټوټه او کباب شوي لاړل او مونږ هم ان شاءالله ورپسې ورځو. دا فراق نه دی چې هغوی تللي او مونږ ورپسې ور روان یو، بلکې فـراق هغـه دی چـې خـدای مکړه هغوی جنت کې او مونږ جهنم کې واوسو (اللّه مو دې وساتي امین) کـه مـونږ یې له ارمانونو سره خدای مکړه خیانت وکړ بیا به مو ربښتیا هم همـدا فـراق وي، خـو که مونږ یې په پلونو پل کېښود، ان شاءاللّه ډېر ژر به په ابدي وصال ونازول شو.

### ۳-: د اللّه لپاره محبت کول د اللّه تعالی اکرام کول دي

ابو امامه رضي اللّه عنه فرمایي چې رسول اللّه صلی اللّه علیه و سلم وفرمایل:

مَا أَحَبَّ عَبْدٌ عَبْدًا لِلَّهِ إِلَّا أَكْرَمَ رَبَّهُ عَزَّ وَجَلَّ [٤٤]. یعنې: هېڅ یو بنده له بل بنده سره د اللّه لپاره محبت نه دی کړی، مګر دا چې د اللّه عزوجل اکرام یې کړی دی.

### ۴-: د اللّه لپاره محبت کوونکي سره اللّه تعالی محبت کوي

امام احمد ابن حنبل رحمه په خپل مسند کې له ابو هریره رضي اللّه عنـه څخـه روایت نقل کړی چې رسول اللّه صلی اللّه علیه و سلم قصـه کولـه چـې: یـو سـړی د خپل ورور چې د اللّه لپاره یې ورسره محبت درلود پوښتنې لپاره بل کلي تـه روان و، اللّه تعالی ورته یوه ملائکه د انسان په شـکل کـې راولېږلـه، کلـه چـې دا سـړی پـرې تېرېده، ورځخه یې وپوښتل: چېرتـه ځـې؟! هغـه وویـل: فلانکـي تـه ورځـم. ملـک وویل: د کومې خپلوۍ له امله؟؟ سړي هغه وویل: نه! ویل یې: د کـومې ښـېګڼې لـه امله چې تا سره یې کړې ده او ته یې ادا کـول غـواړې؟! سـړي ویـل یـې: نـه! ملـک وویل: نو ښه ولې ورځې؟! هغه سړي وویل: زه له هغـه سره د اللّـه لپـاره محبـت لـرم.

[٤٤]( مسند أحمد طبع الرسالة (٣٦/ ٥٦٢)

ملک وويل: نو زه د الله تعالى لخوا تا ته استازى يم، اللّه تعالى له تا سره محبت كوي د هغه محبت له امله چې ته يې له خپل ملگري سره سره لرې!

همدا راز عباده بن صامت رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى اللّه عليه و سلم له ژبې څخه واورېدل چې ويل يې: اللّه تعالى فرمايي:

حَقَّتْ مَحَبَّتِي لِلْمُتَحَابِّينَ فِيَّ، وَحَقَّتْ مَحَبَّتِي لِلْمُتَزَاوِرِينَ فِيَّ... [٤٥] يعني: زما محبت زما لپاره د محبت كوونكو لپاره حق دى، زما محبت زما لپاره د ملاقات كوونكو لپاره حق دى.

### ۵-: د الله لپاره محبت كوونكو ته به د غبطې وړ د نور منبرونه وي

د انبياء كرامو او شهيدانو خپل مراتب تر هر چا لوړ دي، خو هغه يو جزئي فضيلت چې الله تعالى د هغه لپاره محبت كوونكو ته وركړى هغه دا دى چې داسې منبرونه يې ورته جوړ كړي چې انبياء او شهيدان به يې هم غبطه كوي. لكه معاذ بن جبل رضي الله عنه چې فرمايي: ما له رسول الله صلى الله عليه و سلم څخه واورېدل چې ويل يې:

يَقُولُ: قَالَ الله عَزَّ وَجَلَّ: الْمُتَحَابُّونَ فِي جَلَالِي لَهُمْ مَنَابِرُ مِنْ نُورٍ يَغْبِطُهُمُ النَّبِيُّونَ وَالشُّهَدَاءُ. [٤٦]

ژباړه: الله عزوجل فرمايي: زما د جلال له امله محبت كوونكو لپاره د نور منبرونه دي، چې انبياء او شهيدان به ورسره غبطه كوي.

پورتنيو احاديثو ته په كتلو سره لازمه ده چې د مجاهدينو ماحول او خپلمنځي تعامل بايد له سكه ورونو سره تر گوزارې هم ډېر صميمي او خوږ وي، او څومره چې ما وخت تېر كړى نو په باوري توگه ويلى شم چې مجاهدينو كې په كامله معنا

---

[٤٥]( مسند أحمد طبع الرسالة (٣٦/ ٣٢٧)

[٤٦](الترمذي /بَابُ مَا جَاءَ فِي الحُبِّ فِي اللَّهِ/ رقم الحديث: ٢٣٩٠)

د وروری داسې فضا حاکمه ده چې په یوې ډېرې له غمه لـرې کـورنۍ کـې بـه هـم داسې د خوښۍ فضا نه وي حاکمه.

که غواړې چې د الله تعالی محبت، د ایمان خوږوالی، د نور منابر او نورو هغـو نعمتونو ته ورسېږې چې یاد شول، له هر مـؤمن او هـر مجاهـد سره د خپـل ورور پـه څېر محبت کوه!

* * *

## د مجاهدينو لپاره د راز ساتلو اهميت

د هر مسلمان او په ځانګړې توګه د هر مجاهد لپاره د رسول الله صلى الله عليه وسلم سيرت او ويناوې د لارې هغه مشالونه دي چې هېڅکله له دې پرته برياليتوب ته نشي رسېدلی.

لکه څرنګه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سيرت په پوره معنا سره د راز د ساتلو درس راکوي، او دا راښيي چې د اسلامي دعوت د برياليتوب لپاره مهم اصل راز ساتل دي. کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم غواړي چې په مکې مکرمې باندې بريد تر سره کړي د راز د ساتلو پوره کوښښ کوي، هېڅا ته حال نه وايي. تر دې چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د همدې اهتمام له امله چې کله ابوبکر صديق رضي الله عنه عائشې رضي الله عنها ته راشي او هغه وربشي ميدوي، هغه (رضي الله عنه) ترې پوښتنه کوي چې آيا رسول الله صلى الله عليه وسلم د سفر اراده لري؟ ام المؤمنين خپل پلار او د رسول الله صلى الله عليه وسلم خاص ملګري صديق اکبر ته هم حال نه وايي، بلکې ځان بې خبره ښيي، عائشه رضي الله عنها په دې پوهيږي چې که ابوبکر صديق رضي الله عنه له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پخپله پوښتنه وکړي هغه يې ورته وايي، لکه څنګه چې وروسته همداسې وشول هم، خو اوس ام المؤمنين د رسول الله صلى الله عليه وسلم راز ساتي او هېچا ته يې نه وايي.

همدا راز د رسول الله صلى الله عليه وسلم د راز ساتلو د اهتمام له امله الله تبارک و تعالى هم د همدې راز ساتنې خيال ساتي، د هغه راز د افشاء کېدلو مخنيوی د وحيې په طريقې سره کوي چې رسول الله صلى الله عليه و سلم يې له افشاء کېدلو څخه نه و خبر:

داسې وه چې حاطب ابن ابي بلتعه رضي الله عنه يو خط وليکه او په خط کې يې ليکلي ول چې: د حاتب ابن ابي بلتعه له لوري څخه د مکې مشرکينو ته!

رسول الله صلی الله عليه وسلم په تاسې د حملې اراده لري، زه په دې پوهېږم چې په الله قسم که هغه تنها هم په تاسې حمله وکړي نو مکه درڅخه نيولی شي، خو دا ځل هغه ډېر لوی لښکر برابر کړی دی.

دا خط يې يوې ښځې ته ورکړ چې دا د مکې مشرانو ته ورسوي، د الله تعالی لخوا د راز د ساتلو اهميت ته وگوره چې د الله تعالی له لوري وحي راځي او رسول الله صلی الله عليه وسلم د خط په لېږلو خبريږي. رسول الله صلی الله عليه وسلم علي بن ابي طالب او مقداد رضي الله عنهما ليږي چې تاسو لاړشئ! چې کله روضة خاخ ته ورسېږئ، هلته يوه ښځه ده، خط ورسره دی او هغه تري راوړئ! دا دواړه صحابه کرام ځي، کله چې روضة خاخ ته رسيږي او ښځه مومي، هغه انکار کوي. علي رضي الله عنه ورته وايي چې په الله قسم يا به خط راکوې او يا به دې کالي باسو، هغه ښځه هم خط ور کړي. خط رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راورسول شي، هغه (صلی الله عليه وسلم) حاتب ابن ابي بلتعه رضي الله عنه راوغواړي: ورته وايي: دا څه شی دي؟! حاتب رضي الله عنه وايي: يا رسول الله په ما عجله مکوه! په الله قسم د کفر د محبت او له اسلام څخه د نفرت په اساس مې دا کار نه دی کړی، بلکې دلته چې څومره مهاجر صحابه کرام دي هغوی ټول په مکه مکرمه کې کورنۍ لري چې د هغه په مال او اولاد باندې خيال ساتي، خو زه هلته هم له بل ځای څخه راغلی وم او ما غوښتل چې په دې خط سره مې په هغوی دا احسان بار شي چې هلته زما په مال او اولاد باندې نظر وساتي. عمر فاروق رضي الله عنه فرمايي: يا رسول الله (صلی الله عليه وسلم) اجازه راکړه چې د دې منافق سر قلم کړم. رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته فرمايي: نه! پرېږده يې! حاتب بدري دی او ته څه خبر يې چې الله تعالی بدريينو ته څه اطلاع ور کړې ده؟ په تحقيق سره الله تعالی اهل بدر ته (بلاکيفه) اقبال کړي او ورته فرمايلي يې دي چې تاسو کوئ (له نيکو اعمالو

که لږ وي او که ډېر) چې ستاسي خوښه وي، په تحقيق سره ما تاسو ته بخښنه کړې ده.

په پورتنۍ قصه کې که لږ غور وشي نو دا به راته څرگنده شي چې الله تعالی ته د راز ساتل څومره اهميت لري چې خپله جليل القدر ملک جبرئيل امين راليږي او رسول الله صلی الله عليه وسلم خبروي، همدا راز رسول الله صلی الله عليه وسلم ته د راز ساتل څومره اهميت لري او بل دا چې صحابه کرامو ته څومره اهميت لري چې علي بن ابي طالب د يوې ښځې د جامو پروا نه ساتي او عمر فاروق بيا د حاتب د سر قلمولو اجازه غواړي او د منافقت نسبت ورته کوي. (رضي الله عنهم)

همدا راز د راز د ساتلو د اهميت په اړه که د رسول الله صلی الله عليه وسلم ويناوو ته ځير شو نو د راز ساتنې ډېر اصول تـرې مستنبط کيږي چې څو يې په لاندې ډول دي:

### ۱- د راز د افشاء کېدلو اسباب بايد قطع شي

له عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چې أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا تَسْتُرُوا الْجُدُرَ، مَنْ نَظَرَ فِي كِتَابِ أَخِيهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ فَإِنَّمَا يَنْظُرُ فِي النَّارِ.[٤٧] ژباړه: رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايل: د دېوالونو شاته مه کېږئ! (يعني: پټ چاته غوږ مه نيسئ!) او څوک چې د خپل ورور په کتاب (خط) کې د هغه له اجازې پرته وگوري نو يقيناً هغه په اور کې گوري.

په پورته حديث کې که لږ غور وکړو! رسول الله صلی الله عليه وسلم له دوو مهمو اسبابو څخه مونږ منع کوي: لومړی دا چې د چاه خبرو ته پټ غوږ ونه نيسو، او دوهم دا چې د چا په خط (مسج، ليک، خاصه کتابچه او نور...) کې د هغه له اجازې پرته هېڅ شی ونه گورو. چې د دې دواړو بنديزونو خلاصه دا راوځي چې له

---

[٤٧](سنن ابي داود/ بَابُ الدُّعَاءِ/ رقم الحديث: ١٤٨٥)

اړتیا پرته د راز په معلومولو پسې ګرځېدل منع او بد کار دی، نو مونږ ټول مجاهـدین باید ترې ځان وساتو.

**۲- د راز تر لږ افشاء کېدلو وروسته یې هم پټول**

کله نا کله په مجاهدینو او یا هم عامو خلکـو کـې دا خـبره ډېـره بدرګـه کیـږي چې کله د راز د ساتلو په هکله ورته خبره وکړې نو وایي چې پـه دې خـو ټولـه دنیـا خبره ده. راز که څېرته د یو چا خبره وي نو رسول الله صلی الله علیه وسـلم فرمـایي: مَنْ سَمِعَ مِنْ رَجُلٍ حَدِيثًا لَا يَشْتَهِي أَنْ يُذْكَرَ عَنْهُ فَهُـوَ أَمَانَـةٌ، وَإِنْ لَـمْ يَسْـتَكْتِمْهُ [٤٨] یعنې: چا چې له کوم کس څخه داسې خـبره واورېدلـه چـې هغـه (ویـونکی) یـې د ځان لخوا یادول نه غوښتل نو دا امانت دی، که څه هم هغه یې د پټولو غوښتنه ونـه کړي.

او که راز د کوم کـس د کـوم کـار پـه اړه وي نـو پـه دې اړه دحـدیث شریـف مضمون دی: او چا چې په کوم مسلمان پرده واچوله نو الله جل جلاله به د قیامت په ورځ په هغه بنده پرده واچوي.

**۳- ټولې اورېدل شوې خبرې باید و نه ویل شي**

ډېر کله له یو چا څخه رازونه له دې امله افشـاء کیـږي چـې عـادت شـوی وي چې هر څه اوري هغه نورو ته رسوي، او په دې هکله هېڅ فکر نه کـوي چـې دا راز دی کنه؟ دا حقیقت دی کنه؟ او دا مناسبه ده کنه؟ بس هر څه چې اوري هغـه وایـي نو دا هغه صفت دی چې هر مسلمان او بیا په تېره مجاهد خو باید ترې ځان وساتي، څکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمـایي: كَفَى بِالْمَرْءِ كَذِبًا أَنْ يُحَدِّثَ بِكُـلِّ مَـا سَمِعَ [٤٩] یعنې: د یو کس د دروغو لپاره دومره بس دي چې خبرې وکړي د هـر هغـه شي په باره کې چې وایې وري. له دې حدیث څخه په ډاګـه څرګنـدیږي چـې هـره

---

[٤٨] (مسند احمد)

[٤٩] (صحيح المسلم/ بَابُ النَّهْيِ عَنِ الْحَدِيثِ بِكُلِّ مَا سَمِعَ)

اوریدل شوې خبره بدرګه کول په دروغو کې شمېرل کیږي او د دروغ ویلو په هکله چې کوم وعیدونه دي هغه مو بیان کړل.

۴- بل مسلمان ته د تکلیف نه ورکولو عزم کول

کله چې مونږ د کوم کس راز افشاء کوو او په نوموړي باندې د هغه د راز د افشاء کېدلو له امله تکلیفونه راځي دا هغه څه دي چې رسول اللّه صلی اللّه علیه وسلم مونږ ترې منع کړي یو. په اوسني عصر ـ کې کله چېرته مونږ یو جهادي راز افشاء کړو نو اول خو دا چې جهادي فعالیت پاتې کیږي چې ټولو مسلمانانو ته پرې تکلیف رسیږي او دوهمه دا چې د مربوطه کار ټولو ملګرو ته خطر پېښیږي، د چاپو او وحشتونو امکانات پرې ډېرېږي.

همدا راز د ځینو رازونو د افشاء کېدلو له امله شخصي دښمنۍ پیدا کیږي چې وروسته قومي شخړو ته یې د رسېدلو امکان هم وي او مجاهدین د شخصي دښمنیو له امله د مسلمانانو په لاسونو په شهادت رسېږي.

**۵- د راز ساتل د بې زړه توب معنا نه لري**

کله نا کله په مجاهدینو کې چې د راز د ساتلو خبره یاده شي نو بیا وایي چې ته ډارېږې او زه ډار نه پېژنم. مهمه خبره دا ده چې حقیقت کې ډار هغه دی چې د هغه له امله مسلمان له جهادي صف څخه پاتې کیږي، حقیقت کې ډار هغه دی چې جهادي فعالیت یې له امله پاتې شي. خو له دې پرته د جهاد د کولو سره سره احتیاط کول او په خاصه توګه راز ساتل هېڅ د بې زړه توب نښه نه ده، بلکه دا خپل هدف ته د رسېدلو لار ده. له معاذ بن جبل رضي اللّه عنه څخه روایت دی چې فرمايي: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اسْتَعِينُوا عَلَى نَجَاحِ الْحَوَائِجِ بِالْكِتْمَانِ لَهَا فَإِنَّ كُلَّ ذِي نِعْمَةٍ مَحْسُودٌ [۵۰] یعنې: رسول اللّه صلی اللّه علیه و سلم وفرمایل: د خپلو

---

[۵۰](شعب الایمان/باب الحث علی ترك الغل والحسد/ رقم الحدیث: ۶۲۲۸ )

حاجتونو په کامیابولو کې د هغو په پټولو سره کومک تر لاسه کړئ! ځکه هر د نعمت څښتن سره حسد کیږي.

له یاد حدیث څخه په څرګنده توګه ښکاري چې د راز ساتل کوم بې زړه توب نه، بلکې هدف ته د رسېدلو لنډه لار ده.

همدا راز الله تبارک و تعالی چې کله د اصحاب کهف د ځوانانو قصه کوي نو د هغوی احتیاط او راز ساتلو ته داسې اشاره کوي:

وَكَذَٰلِكَ بَعَثْنَاهُمْ لِيَتَسَاءَلُوا بَيْنَهُمْ قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ قَالُوا رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ فَابْعَثُوا أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ فَلْيَنظُرْ أَيُّهَا أَزْكَىٰ طَعَامًا فَلْيَأْتِكُم بِرِزْقٍ مِّنْهُ وَلْيَتَلَطَّفْ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ أَحَدًا. (الکهف/۱۹)

ژباړه: « او همداسې (لکه چې ویده کړي وو موږ اصحاب الکهف) ویښ کړه موږ دوی چې پوښتنه وکړي په خپلو منځونو کې، نو وویل یو ویونکي له دوی نه چې څومره مدت مو تېر کړی دی؟، نو وویل (ورته دغو نورو چې) تېره کړې ده موږ یوه ورځ یا یوه برخه د ورځې، وویل (نورو) چې رب ستاسې ښه خبر دی په هغه مدت چې تېر کړی دی تاسې نو ولیږئ تاسې یو خپل په دې سپینو زرو ستاسې وښار ته، نو ودې ګوري چې کوم یو له دغه (اهل د ښار) نه ښه پاکیزه دی له جهته د طعامه نو رادې وړي تاسې ته رزق له هغه، او نرمي او زیرکي دې کوي (په معامله کې) او نه دې خبروي خامخا په تاسې هیڅ یو هم».

یاده شوې واقعه د هغو ځوانانو ده چې د هېچا پروا یې ونه ساتله او د خپل باچا او د خپل قوم په مخکې پاڅېدل او ویې ویل:

رَبُّنَا رَبُّ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ لَنْ نَدْعُوَ مِنْ دُونِهِ إِلَهًا... (الکهف/ ۱۴)

ترجمه: «کله چې پاڅیدل (پس له ماموریدلو د کفر په سجدې سره) نو وویل دوی رب زموږ رب د آسمانونو او (رب) د ځمکې دی له سره به عبادت ونه کړو بې

له همغه اللّٰه د بل معبود (او که بل څوک موږ په الوهیت سره وبالـه نـو) خامخا پـه تحقیق ویلې به وي موږ هلته خبره خطاء لویه دروغه».

دوی وویـل: زمـونږ رب د اسـمانونو او ځمکـې رب دی او لـه هغـه پرتـه بـه هېڅکله د بل چا عبادت ونه کړو... هو! کله چې د خبرې دښکاره کولـو اړتیـا وه بیـا یې د هېچا پروا ونه ساتله خو کله چې د همغو ظالمانو څخه پټ شـول نـو بیـا خپلـو ملګرو ته د راز د ساتلو او احتیاط توصیه کوي ﴿وَلۡيَتَلَطَّفۡ وَلَا يُشۡعِرَنَّ بِكُمۡ أَحَدًا﴾ نرمـي دې وکړي او څوک دې نه دربـاندې خبروي.

همدا راز کله چې د جهادي دعوت او د دښمن په مقابل کې د درېـدلو وخـت وي نو بیا د ټولې نړی پروا نه راځـي، پـه نـره یـې وایـو چـې جهـاد او استشـهاد مـو همېشنی لار ده او تر هغه به د کفر په مقابل کې جنګیږو تر څو مو چې روح راسره ملتیا کوي او که مونږ لاړ هم شـو زمـونږ راتلـونکي نسـلونه بـه ان شـاء اللّٰـه د کفـري ځواکونو مقابلې ته راځي او هېڅکله به هغوی د ارام ساه اخیستلو ته نه پرېږدو. خـو کله چې د همدې کافر په مقابل کې د عملیاتو پروګرام لرو نو بیا هېڅوک نـه خـبروو او باید راز یې تر آخرې اندازې پورې پټ وساتل شي.

همدا راز له امیرالمؤمنین علي بن ابي طالب رضي اللّٰه عنه څخه روایـت دی چې فرمایي: سِرُّكَ أَسِيْرُكَ، فَإِذَا تَكَلَّمْتَ بِهِ صِرْتَ أَسِيْرَهُ [۵۱] ژبـاړه: سـتا راز سـتا اسـیر دی، خو کله دې چې وویلو بیا یې نو ته اسیر شوې. نو کله چې زه د خپـل راز اسـیر شم بیا کله کولی شم چې د خپل دښمن په مقابل کې بریالي عملیات سر ته ورسوم.

### ٦- په راز نه خبرول د بې اعتمادۍ معنا نه لري

د جهادي صف ځینې ملګري دا فکر کوي چې زمونږ په ګروپ یا ډلګی کـې چې کوم شیان سرته رسیږي باید زه ترې خبر واوسم ځکه زه خو اوس د دې ګروپ یو غړی یم او که ما ته خبره نه رسېږي دا دا معنا لري چې په مـا بانـدې دوی اعـتماد

---

[۵۱](لباب الآداب لأسامة بن المنقذ)

نه لري او ايا زه دامير د اعتماد وړ نه يم. همدې ډول فکر کوونکو ملګرو ته دا ويل غواړم چې رسول الله صلى الله عليه وسلم چې په ابوبکر صديق رضي اللّه عنه باندې کوم اعتماد درلود هغه کله په بل شخص باندې کېدلی شو، خو سره له دې د منافقينو نومونه ابوبکر صديق رضي الله عنه ته نه دي معلوم، خو حذيفه بن يمان رضي الله عنه ته ټول معلوم دي، هېڅکله له دې څخه چا دا مطلب نه دی اخيستی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په ابوبکر صديق رضي الله عنه باندې اعتماد نه درلود. نو مونږ هم بايد همدا خبره ځانته د لارې مشال وګرځوو او دا ونه ګڼو چې زه بايد له هر څه خبر واوسم، بلکې کومه خبره چې امير ما ته کوله هغه بايد واورو او نور هېڅکله د پټو رازونو په معلومولو پسې ونه ګرځو.

مجاهده وروره! کله چې ستا خپل زړه خپل راز نشي ساتلی او ستا خپله ژبه يې د ساتلو وړتيا نه لري او نورو ته يې رسوي؛ نو بيا ته څنګه د بل چا په سينې دومره باور کولی شې چې ستا راز به وساتي او پردۍ ژبه به څنګه ستا راز چاته ونه وايي؟!

نو څکه وايو چې: که غواړې بريا ته ورسېږې! که غواړې چې جهادي فعاليت دې تر وخت مخکې شنډ نشي، نو د خپل راز د ساتلو وړتيا په ځان کې پيدا کړه او خپل ټول ملګري همداسې وروزه!

* * *

## جهادي صف او د ملګرو په هکله د امير مسئوليتونه

د حق او د باطل د صفونو په منځ کې تر ټولو ستر توپير دا دی چې د باطل پـه صف کې چې څومره انسان ته ستر کار سپارل کيږي نو سـهولتونه ورتـه زيـاتيږي او پوښتنه ترې کميږي، خو بر عکس د حـق پـه لښـکر کـې چـې مجاهـد څـومره لـوړ منصب ته رسيږي هومره يې تکليفونه ډېريږي، مسؤليت يې زياتيږي او همدومره يې پوښتنه سختيږي.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم د سـيرت او ارشـاداتو سره سـم چـې پـه اميـر باندې د کومو شيانو مسئوليت دی د هغه پوره کول يې وجيبه ده او د نه پوره کولو په حال کې بيا ورته د سختو عذابونو وعيد بيان شوی دی.

له معقل بن يسار رضي الله عنه څخه روايت دی چې فرمـايي: سَـمِعْتُ رَسُـولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَا مِنْ أَمِيرٍ يَـلِي أَمْـرَ الْمُسْـلِمِينَ، ثُـمَّ لَا يَجْهَـدُ لَهُـمْ، وَيَنْصَحُ إِلَّا لَمْ يَدْخُلْ مَعَهُمُ الْجَنَّةَ. (۵۲) يعنې: ما له رسول الله صلی اللـه عليـه وسـلم نـه واورېدل چې فرمايل يې: نشته داسې کوم امير چې د مسلمانانو کوم کار ورته سـپارل شوی وي بيا هغـه د هغـوی (د خپـل رعيـت) لپـاره کوشـش نـه کـوي او هغـوی تـه نصحيت نه کوي، مگر دا امير به له هغوی سره جنت ته نه داخليږي. همدا راز په يوه بل روايت کې راځي چې: إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَـا مِـنْ عَبْدٍ يَسْتَرْعِيهِ اللهُ رَعِيَّةً يَمُوتُ يَوْمَ يَمُـوتُ، وَهُـوَ غَاشٌّ لِرَعِيَّتِـهِ إِلَّا حَـرَّمَ اللهُ عَلَيْـهِ الْجَنَّةَ. (۵۳) يعنې: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم نـه واورېـدل چـې فرمايـل يـې: نشته داسې يو بنده چې الله تعالی ورته کوم وړوکی رعيت پـه لاس کـې ورکـوي بيـا هغه بنده مړ کيږي ’ په هغه ورځ چې مړ کيږي په داسې حال کې وي چې دی دوکـه

(۵۲) صحيح المسلم/ بَابُ اسْتِحْقَاقِ الْوَالِي الْغَاشِّ لِرَعِيَّتِهِ النَّارَ/ رقم الحديث: ۱۴۲)

(۵۳)(المسلم/ بَابُ فَضِيلَةِ الْإِمَامِ الْعَادِلِ، وَعُقُوبَةِ الْجَائِرِ.../ رقم الحديث: ۲۲۷)

کوونکی وي له خپل رعیت سره، مگر الله تعالی به په دې امیر بانـدې جنـت حـرام گرځوي.

د امیر لخوا د رعیت په حقوقو کې سستي کول هغه ته د سخت عـذاب باعـث گرځي، همدې وعیدونو ته که فکر وکړو نو د هر امیر رعیت ته هم دا اړتیا ده چـې د خپلو امیرانو سره مرسته وکړي، په دې معنا سره چې که له هغوی څخه کوم مسئولیت هېرېږي همدا ملگري یې باید وریاد کړي او که هغوی ته کوم کار او مسـئولیت یـاد وي نو له خپل امیر سره مرسته وکړل شي. ځکه؛ مونږ عملا وینـو چـې زمـونږ امیرانـو زمونږ لپاره په ځان ډېرې سختۍ برداشت کړي، د دښمن ډېره توجه هم همـدوی تـه وي، که مونږ خپلو کورونو ته څو ورځې یاشـپې نشـو ورتللـی، نـو زمـونږ امیـران پـه میاشتو او کلونو خپلو کورونو ته نشي ورتللی، دا هغه د فکـر لمحـه ده چـې بایـد لـه خپلو امیرانو سره د هغوی د مسئولیت په ادا کولو کې پوره مرسته وکړو.

د همدې موضوع په اړه له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې:

أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَا مِنْ أَمِيرِ عَشَرَةٍ إِلَّا يُؤْتَى بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَـةِ مَغْلُولَةٌ يَدَاهُ إِلَى عُنُقِهِ، أَطْلَقَهُ الْحَقُّ أَوْ أَوْبَقَهُ. [٥٤] یعنې: د الله نبي صلی الله علیه وسلم وفرمایل: نشته داسې یو کس چې د لسو کسانو امیر وي مگر د قیامت په ورځ بـه پـه داسې حالت کـې راوسـتل شي چـې لاسـونه بـه یـې تـړلي وي یـواځې حـق بـه یـې خلاصولی شي او کنه نو هلاکیږي!!.

په دې لړ کې باید ووایم چې د امیر د مسئولیتونو په اړه لکه څرنگـه چـې فکـر کیږي چې د امیر مسئولیت به یواځې د خپل رعیـت او افـرادو مـادي اړتیـاوې پـوره کول وي نو دا یو خطا فکر دی. که له ځـان سره فکـر وکـړو: کـه چېرتـه یـو امیـر او قوماندان خپل پنځه ملگري د دښمن پر کـوم مرکـز او پاپوسـته بانـدې د بریـد لپـاره ولیږي خو د هغوی د اړتیا څخه کم مثلا دېـرش مرمـۍ یـې ورکـړې وي او د هغـوی

[٥٤](سنن الدارمي/ بَابُ: فِي التَّشْدِيدِ فِي الْإِمَارَةِ/ ٢٥٥٧)

ضرورت تر سلو مرمیو هم زیات وي، په داسي حال کې چې د امیر سره تـر دې ډیـر مهمات او مرمۍ وي، نو داسې امیر ته به مونږ څه ووایو او د مجاهدینو په منځ کـې به په کوم نامه شهرت پیدا کړي: ټول به همدا وایي چې د خپلو ملګرو پـه حـق کـې یې ډېره کمزوري کړې ده. دا د هغوی مادي حق دی چې ټـول یـې الحمدللـه پـوره کوي، مګر د معنوي اړتیاوو لپاره هېڅوک فکر نـه کـوي. یـوه ورځ یـو مجاهـد سره ناست وم، زخمي و، ډېر مجلس مو وکړ، د مجلس په جریان کې مې په جهاد کـې د ګډون علت او هدف ترې وپوښت، د نوموړي ځواب ډیر سـطحي او تأسـف وړ و، هغه داچې جهاد کې د ګډون هدف یې پر نورو قومونو د خپل قوم برتري او سـیالي وښودل. سبحان الله! د داسې کس امیر به د الله په حضور کـې څـه ځـواب ورکـوي چې ملګري یې دوه نیم کاله په یوه صف کې ملګرتیا ورسره کړې وه، خـو مشر-یـې دا ورته نه و ښودلي چې ته باید د کوم هدف لپاره وجنګېږې! نـو امیرانـو تـه همـدا پیغام لرو چې د الله د رضا په خاطر د ملګرو د مادي اړتیاوو د پوره کولو څخه ډېر د هغوی د معنوي اړتیاوو د پوره کولو کوښښ وکړئ!

د مسئولیت د ادا کولو لپاره علماء کرامو (ما له خپل استاد شـیخ الحـدیث نـور الله «منیر» حفظه الله څخه دا لیکل کړي) پنځه شرائط بیان کـړي دي چـې ضروري ده هر امیر او هر هغه کس چې د جهادي صف کوم مسئولیت ورته سپارل کیږي پـه دې باندې فکر او عمل وکړي:

### ۱-: خپل نیت خاص او خاص د الله لپاره کول

لکه څرنګه چې د کتاب په پیل کې د نیت په اړه وویل شول چـې کـه د اللّـه د رضا لپاره خاص یو کار ونکړو که هر څومره هم ښه کار وي الله تعـالی یـې اجـر نـه راکوي، نو د دې لپاره چې خپل مسئولیت مو په سمه توګـه ادا کـړی وي، نـو بایـد د هر مسئولیت د ادا کولو پر مهال نیت خاص د الله لپاره وساتو.

### ۲-: پخپل مسئولیت باندې په کامله معنا سره ځان پوه کول

کله چې کوم کس ته د جهادي مشرانو لخوا کوم مسئولیت سپارل کیږي نو په هغو مهمو خبرو کې یوه دا ده چې د خپل مربوطه مسئولیت په ټولو غوښتنو باندې ځان پوه کړي چې یاد مسئولیت له ما څخه کومې غوښتنې لري او بايد زه څومره کوښښ وکړم چې خپل مسئولیت په سمه توګه پوره کړی شم.

### ۳-: له نورو کارونو څخه خپل همدې مسئولیت ته ځان فارغول

پخپل مسئولیت کې هغه مهال له يو چا سستي ډېره کیږي چې کله ورسپارل شوی مسئولیت دوهم کار وګڼل شي، د بېلګې په توګه يو کس دی چې خپله دواخانه لري خو د اسلامي امارت لخوا ورته د زخمیانو مسئولیت سپارل کیږي، مګر نوموړی داسې وکړي چې له سهاره تر مازدیګره خپل شخصي کار پسې اخته وي او وروسته بیا د زخمیانو ځای ته ورځی سره له دې چې هغوی ورته ټوله ورځ اړتیا لري، نو دا هغه مشکل دی چې پخپل مسئولیت کې یې شاته پاتې کوي او هغو وعیدونو کې یې راولي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مسئول د سستۍ په اړه بیان کړي دي.

### ۴-: له خپل مسئولیت سره محبت کول

ډېری وخت په جهادي خدمت کې مجاهد ته د خپل طبیعت سره سم مسئولیت نه سپارل کیږي، لکه داسې چې مجاهد ځوان دی او د خپلې جذبې په اساس دا غواړي چې د جنګ په لومړۍ کرښه کې وي، خو د مشرانو د بصیرت په وجه هغه ته د بندیانو اړوند مسئولیت سپارل کیږي. سره له دې چې نوموړی له دې کار سره جوړ نه دی، خو د الله تعالی رضا په همدې کې ده چې له همدې ورسپارل شوي کار سره په پوره معنا سره محبت وکړي او همدا عملي کړي، ځکه؛ که له خپل کار سره محبت ونکړي نو بیا ترې سستۍ کیږي چې نتیجه به یې همدا وعیدونه وي، نو هر مجاهد ته همدا پیغام لرو چې که ستا خوښ دی او کنه؟ خو چې کله د امارت له لوري درته کوم مسئولیت سپارل کیږي همدې کې پوره خواري او کوشش وکړه!

که د رب خوښه وه نو ان شاء اللّٰه تر نورو به ستا اجر ډېر زيات وي، ځکه تا اطاعت په داسې حال کې وکړ او مسئوليت دې په داسې حال کې سرته ورساوه چې ستا ورسره جوړه نه وه خو د رب د رضاء لپاره دې همدا کار په اخلاص او ښه ډول سرته ورساوه.

**۵-: دا احساس چې وظيفه کوم عزت او تکريم نه! بلکې يو مسئوليت دی**

کله چې انسان خپل مسئوليت خپل عزت او اکرام وګڼي او د مسئوليت په سترګه ورته ونه ګوري، نو بيا ترې سستي شروع کيږي. نو هر مسئول ملګري ته پکار ده چې د علماوو د ارشاداتو سره سم دا خپل اکرام نه، بلکې دا د خدمت موقع وګڼي او د شهيدانو، يتيمانو او مظلومانو د حقونو او ارمانونو د يو درونـد او مهم مسئوليت په سترګه ورته وګوري.

محترمو مسؤولينو! که چېرته خپل مسئوليت- مسئوليت ونه ګڼئ او سستي پکې وکړئ؛ بيا به د مخلصو او مظلومو سرسپارلو مجاهدينو د وينو د سېلابونو او د يتيمانو او کونډو دآهونو او اوښکو د سيندونو ځواب د اللّٰه جل جلاله په حضور کې څنګه ورکوئ؟!

❋ ❋ ❋

# جهادي مسير باندې صبر او استقامت

د الله تعالی سنت دا دی چې په خپلو بندګانو باندې امتحان راولي او د هغوی صبر آزمايي. په قرآن کريم کې د انبياء کرامو قصې، په احاديثو کې د انبياء کرامو او د پخوانيو امتونو د کړاوونو قصې، همدا راز د رسول الله صلی الله عليه وسلم بشپړ سيرت او د رسول الله صلی الله عليه وسلم او د صحابه کرامو په ازمېښتونو کې د واقع کېدلو قصې مونږ ته د همدې لپاره بيان شوې دي چې همدا مو مسير دی.

که مونږ د ابراهيم خليل الله د ملت دعوه کوو نو نمرودي اورونه به خامخا زغمو. که مونږ د رسول الله صلی الله عليه وسلم د امتيت دعوه کوو، نو د مکي تکاليفو سربېره به د احزابو سترړيا، د احد زخمونه او د تبوک لوږه او تنده هم زغمو.

امتحان او ازمېښت راتلل هيڅکله د شکست معنا نه لري، بلکې شکست مو هغه دی چې خدای مکړه له خپل مسير څخه کاږه شو. که خدای مکړه کومه ورځ مو د اسلامي نظام له عزم څخه لاس واخيست او يا کومه ورځ د دښمن له وېرې له خپل شعار څخه کاږه شولو، هغه ورځ مو شکست دی او هغه ورځ باندې خفګان پکار دی. که د الله په لار باندې مسقتيم وو او خدای مکړه ټول ملګري مو راته شهيدان شي دا مو شکست نه دی. که د الله تعالی د دين په جرم مو په يوه ورځ سلګونه ملګري هم د زندان تورو تيارو ته رسېږي دا مو شکست نه دی. همدې ته تيار يو او دا مو هېڅکله له خپل مسير څخه ان شاء الله نشي ـ اړولی. او همدا مو د رب وعده ده:

وَلَنَبۡلُوَنَّكُم بِشَيۡءٖ مِّنَ ٱلۡخَوۡفِ وَٱلۡجُوعِ وَنَقۡصٖ مِّنَ ٱلۡأَمۡوَٰلِ وَٱلۡأَنفُسِ وَٱلثَّمَرَٰتِۗ. (البقره/ ۱۵۵)

يعنې: «او خامخا موږ به ازمايو هرومرو تاسي په يوه شي چې هغه عبارت دی (د دښمن) له ويري او له لوږي (قحط) او له کموالي د مالونو (په راز راز افتونو سره)

او د نفسونو (په قتل، موت، مرض او نورو) او د مېوو (په اسـماني او مځکنـي افتونـو سره) ».

د ملګرو شهیدانېدل او بندیانېـدل (کمېـدل)، همـدا راز د اقتصـادي مشـکلاتو (اسلحه او مهمات نه درلودل او د خرچې برابرېدلو توان نه درلودل) دا هغه امتحانونه دي چې څوارلس سوه کاله مخکې يې الله تعالی خبر راکړی، دا بـه خامخـا راځـي، خو: وَبَشِّرِ الصَّٰبِرِينَ! الله تعالی خپل پيغمبر ته فرمايي چې: صـبر کوونکـو تـه زيـری ورکړه! هغه صبر کوونکو ته چې د مصيبت پـه وخـت کـې: إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّآ إِلَيۡهِ رَٰجِعُونَ وايي او دا هر څه د الله تعالی لخوا ګڼي.

مجاهدينو ورونو! د مشکلاتو راتلل، د ملګرو شهیدانېدل، د فتحه شوو ځـايونو له لاسه وتل مو بايد عزم کمزوری نه کړي، ځکه دا د اللّـه تعـالی لخـوا امتحـان دی: إِن يَمۡسَسۡكُمۡ قَرۡحٞ فَقَدۡ مَسَّ ٱلۡقَوۡمَ قَرۡحٞ مِّثۡلُهُۥۚ وَتِلۡكَ ٱلۡأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيۡنَ ٱلنَّاسِ وَلِيَعۡلَمَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَيَتَّخِذَ مِنكُمۡ شُهَدَآءَۗ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلظَّٰلِمِينَ وَلِيُمَحِّصَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَيَمۡحَقَ ٱلۡكَٰفِرِينَ (ال عمران ۱۴۰،۱۴۱)

ژباړه: «که ورسيږي تاسي ته زخم نو په تحقيق رسيدلی دی قوم (د کفـارو) تـه (هم) زخم په شان د زخم ستاسي، او دا ورځې (د ژوندون) اړوو را اړوو يې (په وار) په منځ د خلکو کې، او د پاره د دې چې معلـوم کـړي اللّـه هغـه کسـان چـې ايـمان لرونکي دي (په علم الشهود سره هـم) او (بـل د پـاره د دې چـې) ونيسي- (اللّـه) لـه تاسي شهيدان، او الله نه خوښوي ظالمان (کافران). او (بل د پـاره د دې چـې پـاک ا وصاف کړي) الله (له ګناه) هغه کسان چې ايمان لرونکي دي او هلاک کړي (اللّـه) کافران».

نن که دا امتحان په مونږ دی داسې ډېر مصيبتونه مو د خپل دښمن کور ته هم اړولي دي. دا کړاوونه مو بايد له خپل مسير څخه کاږه نکړي، د الله تعالی په لاره بـه کلک اوسو! الله تعالی له مونږ سره دی او نصرت به مو کوي.

مجاهدينو ورونو! ﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُم مَّثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلِكُم مَّسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا حَتَّىٰ يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَىٰ نَصْرُ اللهِ أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللهِ قَرِيبٌ﴾ (البقره/ ۲۱۴)

ژباړه: «بلکې ايا گومان کوئ تاسي (اى مؤمنانو) چې داخل به شئ تاسي جنت ته حال داچې راغلي به نه وي په تاسو باندې په مثل (د سختيو) دهغو کسانو چې تېر شوي دي پخوا له تاسي نه چې رسيدلې وه دوی ته سختي (لکه فقر او مرض) او رنځ او گرځول شوي وو دوی (په سختيو سره) تر هغه پوري چې وويل به (هم) رسول او (هم) هغو کسانو چې ايمان يې راوړی وو سره له ده، چې کله به وي نصرت د الله؟ خبردار شئ، واورئ! چې بېشکه نصرت د الله نژدې دی (مؤمنانو ته)».

الله تعالی دا قصې د همدې لپاره راته کوي چې د خپل وخت (نبي) نور دې حد ته رسېږي چې وايي: (مَتَىٰ نَصْرُ اللهِ) نو نن خو په تا هم امتحان خامخا راځي. د الله تعالی نصرت له مونږ سره دی، که مونږ د الله تعالی په لاره باندې ثابت قدم پاتې شو، خامخا به وروستی فتحه زمونږ په برخه وي. ان شاء الله

الله تعالی تاسو (مجاهدينو) ته په خاص خطاب کې فرمايي چې:

﴿وَلَا تَهِنُوا فِي ابْتِغَاءِ الْقَوْمِ إِن تَكُونُوا تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ وَتَرْجُونَ مِنَ اللهِ مَا لَا يَرْجُونَ وَكَانَ اللهُ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ (النساء/ ۱۰۴)

ژباړه «او سستي (بې همتي اى مؤمنانو) مه کوئ! په طلب (تعقيب او جنگ) د قوم د کفارو کې، که يئ تاسي چې دردمن کيږئ نو بېشکه دوی (هم) دردمن کيږي هماغسي چې تاسي دردمن کيږئ، او هيله او اميد لرئ تاسي (له جانبه د) الله د هغه (ثواب) چې نه لري دوی (کفار) اميد يې او دی الله (په هر شي) ښه عالم ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي)».

عامو مؤمنانو ته وایم: الله تعالی فرمایي: أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللهُ الَّذِينَ جٰهَدُوا مِنكُمْ وَيَعْلَمَ الصّٰبِرِينَ (ال عمران/ ۱۴۲) ژباړه: « (بلکې) ایا گومان کوئ تاسي (ای تښتیدونکو په احد کې) د دې چې داخل به شئ جنت ته حال داچې معلوم کړي به نه وي الله (په علم ظهور سره هم) هغه کسان چې جهاد یې کړی دی له تاسي ځني او (نه دي په علم ظهور سره) معلـــوم کړي (اللّه) صابران (ثابت په ســختیو کې) ».

تاسو له ځان سره فکر وکړئ چې اللّٰه تعالی دا فرمایي چې داسې په مفته جنت ته نشئ داخلېدلی تر څو چې مجاهدین درکې معلوم نشي، نو ته بیا د دښمن له وېرې ولې د مجاهدینو له صف څخه لرې تښتې؟؟؟ آیا له کافر دښمن څخه وېرېږې؟؟؟ د اللّٰه تعالی عذاب درته تر دې کم ښکاري؟؟؟

له خپل مسیر څخه کږېدل ابدي ناکامي ده. نن که څومره هم تکلیفونه راشي خو تر دې ژوند پورې به تړلي وي، د دې ژوند ټول اوږدوالی یواځې د قیامت ورځې ته هم نشي رسېدلی دا خو لا څه کوې چې تر قیامت وروسته به څومره اوږد ژوند وي. که غواړئ چې له ابدي نا کامۍ ځان وساتئ، نو د مجاهدینو ظاهري شکست، کمزوري او شهیدانېدل مو باید عزم سست نکړي. د اللّٰه تعالی په دین باندې منګولې ولګوئ! او په هر حالت کې د اللّٰه تعالی په دین باندې استقامت غوره کړئ! امتحان او ازمېښت د اللّٰه تعالی سنت دی او په دې کې ناکامي ابدي ناکامي ده.

* * *

## د اتفاق اهمیت او د اختلاف ناخوالې او تاوانونه

د اسلامي تاریخ له پیل څخه تر نن ورځې پورې کفري قوتونه تر هغه وخته پورې په اسلامي ځوانانو نه دي بریالي شوي تر څو چې اسلامي امت په اتفاق و، خو کله چې اسلامي امت پخپله ټوټې ټوټې او په اختلافاتو کې راګیر شو نو هغه ذلت ته ورسېد چې لیدونکي یې هېڅ دا فکر نه کوي چې دا امت یو وخت د نړۍ تر ټولو ستر قوت و.

معاصر جهاد په کامله توګه دفاعي دی، سره له دې چې د امت اولنیو د دې حالت تصور هم نه کاوه چې مسلمانان به هغه حالت ته هم رسېږي چې کفري قوتونه به یې کور ته رارسېدلي وي خو دوی به لا هم فرض جهاد، جهاد نه ګڼي، په یوه او بله پلمه به ځان ترې څنګ ته کوي او حتی پر مجاهدینو او روان جهادي بهیر به بې ځایه نیوکې او اعتراضونه لا هم کوي!!.

په اوسني وخت کې چې د امت دفاع صرف مجاهدینو ته ورپاتې ده، جاسوسي او شیطاني شبکې او افراد کوشش کوي چې د مجاهدینو په منځ کې اختلافات راپیدا کړي او خپلو کرغېړنو اهدافو ته ځان ورسوي.

مجاهد باید له ځان سره فکر وکړي: دا چې زما د اختلاف له امله زما یو صف (امارت اسلامي) خدای مکړه ټوټه ټوټه کیږي، دا چې زما د اختلاف له امله د الله تعالی نصرت راڅخه لیرې کیږي، او دا چې زما د اختلاف له امله د لکونو شهیدانو وینې ضایع کېږي، رب ته به په کومو سترګو درېږم؟؟؟

الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه و سلم د اختلاف د بدۍ او تاوانونو او د اتحاد د نیکۍ او ګټو په اړه ډېر وضاحتونه کړي چې څو به یې مونږ ذکر کړو:

**۱-: اتفاق د الله تعالى امر، د الله تعالى نعمت، او د جهنم له غاړې د ځان ساتلو يواځنۍ لار**

الله تعالى په خپلو بندګانو دومره نعمتونه لورولي چې كه يو انسان سل كاله عمر هم ولري او يواځې د الله تعالى د نعمتونو په شمېرلو كې يې مصرف كړي نه يې شي شمېرلى. خو؛ الله تعالى د هر نعمت يادونه نه كوي، بلكې يواځې د هغو نعمتونو يادونه كوي چې ډېر ستر وي. الله تعالى فرمايي:

وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَآءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِۦٓ إِخْوَٰنًا وَكُنتُمْ عَلَىٰ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنْهَا كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللهُ لَكُمْ ءَايَٰتِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ. (آل عمران/۱۰۳)

ژباړه: «او منګولي ولګوئ (اى مؤمنانو) په رسۍ د الله (چې قران دى) ټول او مه سره مختلف كيږئ (وروسته له اسلامه). او ياد كړئ تاسي (اى مؤمنانو) نعمت (احسان) د الله پرتاسي كله چې وئ تاسي دښمنان نو الفت (مينه) يې پيدا كړه په منځ د زړونو ستاسي كې نو وګرځيدئ تاسي په نعمت (رحمت) د الله سره (اسلامي) ورونړه او وئ تاسي په غاړه د كندې له اوره (د دوزخ په سبب د ګمراهۍ او كفر) نو خلاص يې كړئ تاسي له هغه (اوره په اسلام سره)، همداسي (لكه چې د اتفاق مفاد او د نفاق ضرر يې بيان كړل) بيانوي الله تاسي ته دلايل (د قدرت) خپل له پاره د دې چې تاسي په سمه صافه لاره ثبات او دوام ومومئ».

د الله تعالى امر د اعتصام بحبل الله (د الله تعالى په رسۍ منګولې خښول) دى، مونږ هم بايد د الله په رسۍ منګـولې ولګوو او د اخـتلافاتو څخه په كامله معنا ځان وساتو.

**۲-: د الله تعالی رضا په اتحاد کې ده**

هغه کار چې اللّه تعالی د خپلو بندګانو لپاره خوښ کړی وي هېڅکله د بندګانو د ناکامۍ سبب نشي- ګرځېدلی، بلکې د تل لپاره به یې د دواړو دنیاوو سعادتونه پکې رانغښتي وي.

اتفاق او له اختلاف څخه ځان ساتل هغه کار دی چې اللّه تعالی زمونږ لپاره خوښ کړی دی، له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول اللّه صلی الله علیه و سلم وفرمایل: إِنَّ الله يَرْضَى لَكُمْ ثَلَاثًا، وَيَكْرَهُ لَكُمْ ثَلَاثًا فَيَرْضَى لَكُمْ أَنْ تَعْبُدُوهُ، وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا، وَأَنْ تَعْتَصِمُوا بِحَبْلِ الله جَمِيعًا، وَلَا تَفَرَّقُوا، وَيَكْرَهُ لَكُمْ قِيلَ وَقَالَ، وَكَثْرَةَ السُّؤَالِ، وَإِضَاعَةَ الْمَالِ. (مسلم) ژباړه: اللّه تعالی تاسو ته درې شیان خوښوي او درې درته بد ګڼي: دا درته خوښوي چې: یواځې د هغه تعالی عبادت وکړئ او بل شریک ورسره ونه نیسئ! د اللّه په رسۍ ټول منګولې ولګوئ او اختلاف ونکړئ! او دا درته نه خوښوي چې ډېر قیل او قال (بې ځایه او بې مراده خبرې او مباحثې) وکړئ! او دا درته بد ګڼي چې ډېرې پوښتنې وکړئ! او د مالونو اسراف وکړئ! نو هغه کار چې اللّه تعالی راته خوښ کړی مونږ به یې ولې نه خوښوو؟؟؟

**۳-: اختلاف او جنجالونه د ناکامۍ ستر لامل دی**

که مونږ په خپل منځ کې اتفاق ونه لرو او یواځې په وړو خبرو د جهادي ګروپ ملګرو تر منځ، یا د جهادي ګروپونو تر منځ او یا هم د ډلګیو تر منځ اختلاف ته لاره برابروو، نو د اللّه تعالی نصرت به راڅخه لرې شي، او سخت شکست به وخورو، ځکه چې اللّه تعالی فرمايي: **وَلاَ تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللهَ مَعَ الصَّابِرِينَ** (الأنفال/۴۶)

ژباړه: «او حکم ومنئ تاسي د اللّه او د رسول د دغه (اللّه) او مه کوئ جګړه په خپلو منځونو (په کار د جهاد کې) پس بې زړه به شئ تاسي او لاړ به شي باد«د

نصرت او قوت او د دولت» ستاسي او صبر کوئ (په قتال او سختيو)، بېشکه اللّٰه لـه صابرانو سره دی«په جنګ کې په نصرت او حفاظت»

هېڅکله يو اختلاف ته په کمه سترګه کتل نه دي پکار، که د يوه ګروپ د دوو ملګرو تر منځ هم لږ اختلاف پيدا شو اثـر يـې پـه ټولـو مجاهـدينو کېـدلی شي. کـه چېرته په حقيقي توګه دا غواړئ چې اللّٰه تعالی تـه پـه سـپين مـخ ودرېـږئ! هېڅکـه اختلاف مکوئ!

د رسول اللّٰه صلی اللّٰـه عليـه و سـلم پـه وخـت کـې هـم چـې کلـه مجاهـدينو اختلاف کړی، اللّٰه تعالی د دنيا په محبت کې راګيـر کـړي دي او کـوم نصرت چـې ورسره شوی و او فتحه يې مله وه، خو د اختلاف له املـه ورسره شـوی نصرت تـرې اخيستل شوی او لـه سـخت شکسـت سره مخـامخ شـوي دي. اللّٰـه تعـالی يـې خـبر بيانوي:

وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللهُ وَعْدَهُ إِذْ تَحُسُّونَهُمْ بِإِذْنِهِ حَتَّى إِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ فِي الأَمْرِ وَعَصَيْتُم مِّن بَعْدِ مَا أَرَاكُم مَّا تُحِبُّونَ مِنكُم مَّن يُرِيدُ الدُّنْيَا وَمِنكُم مَّن يُرِيدُ الآخِرَةَ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ وَلَقَدْ عَفَا عَنكُمْ وَاللهُ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ. (آل عمران/۱۵۲)

يعنې: «او خامخا په تحقيق رښتيا کړه تاسي ته اللّٰه وعده خپلـه پـه هغـه وخـت کې کله چې وژل تاسي کافران په اذن (حکم) د اللّٰه سره، تر هغه وختـه پـوري چـې بې زړه شوئ تاسي او (په خپلو منځو کې) سره مخالف شوئ په امر (د نبـي) کـې او نافرمانۍ وکړه تاسي. تر هغه وروسته چې در وښـود تـاسي تـه (اللّٰـه) هغـه شـی چـې ستاسي خوښ و (له نصرت او غنميت څخه) ځيني له تاسي هغه دي چـې خوښـوي دنيا (دا ژوندون لږ خسيس) او ځيني ستاسي هغه دي چې خوښوي اخرت، بيا (اللّٰه) وګرځولئ تاسي له کافرانو څخه (په تيښته سره) له پاره د دې چې وازمايې تـاسي، او هرومرو (خامخا) په تحقيق عفووه وکړه (اللّٰه تاسي ته، (يا)) او خامخا په تحقيق عفوه

وکړه (الله) له تاسي (چې ټول يې پردوی قتل نه کړئ) او الله څښتن (مالک) د لوی فضل (رحمت، مهرباني او احسان) دی پر مؤمنانو باندې».

الله تعالی اختلاف د ناکامۍ ستر لامل ښودلی او د صحابه کرامو په ژوند کې يې عملاً هم د هغه شکست قصه کړې چې د الله تعالی د نصرت په زور فتحه راغلې وه، خو د اختلاف له امله الله تعالی بې ثباته کړل او شکست يې وخوړ. مونږ وينو چې الله تعالی د خپل نصرت په زور سره اسلامي امارت د فتحې درشل ته نږدې کړی او ډېر ژر به ان شاء الله اسلامي امت يو ځل بيا د اسلامي نظام خوښي ويني، خو که خدای مکړه په مونږ کې اختلاف پيدا شو بيا به الله تعالی راځخه خپل نصرت واخلي چې بيا به هېڅکله هم بريالي نشو.

* * *

### ۴-: د اختلاف له امله الله تعالی په پخوانیو امتونو سختی راوستلې

الله تبارک و تعالی خپلو پخوانیو پیغمبرانو ته هـم د اتفـاق امـر او لـه اخـتلاف نهی کړې وه، لکه چې فرمايي: شَرَعَ لَكُم مِّنَ الدِّينِ مَا وَصَّى بِهِ نُوحًا وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَى وَعِيسَى أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ وَلَا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ. (الشورى/۱۳)

ژباړه: «مقرر کړی بیان کړی دی (الله) تاسي ته له دین څخه هغه چـې وصـیت (حکم) یې کړی و، په هغه سره نوح (ع) ته او هغه څېز چې وحـي حکـم کـړی دی تاته (ای محمده) او هغه (څېز) چې حکم کړی و موږ په هغه سره ابراهیم (ع) تـه او موسی (ع) ته او عیسی (ع) ته، داسي چې قائم کړی سم ودروئ دین (د توحیـد) او مه غورځوئ اختلاف په هغه کې».

د الله تعالی دا امر د یادو انبیاوو ټولو امتونو ته شوی و، خو کله چې هغوی دا امر عملي نکړ او پخپل دین کې یې اختلاف وکړ نو الله تعالی دومره ترې بېزاره شو چې خپل نبي (صلی الله علیه و سلم) ته فرمایي: إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ إِنَّمَا أَمْرُهُمْ إِلَى اللهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ (الأنعام/۱۵۹)

ژباړه: «بېشکه هغه کسان چې تار په تار کړی یې دی دین خپل (چې ځیني یې مني او ځیني یې نه مني) او شول دوی فرقې فرقې، نه یې ته له دوی نـه پـه هـیڅ شي کې (یعني هیڅ تعرض ورته مه کوه) بېشـکه همـدا خـبره ده چـې امـر (کـار) د دوی (سپارلی شوی دی) الله ته بیا به خبر کړي (الله) دوی په هغه چې وو دوی چې کول به یې».

کله چې الله تعالی د خپلو انبیاوو له امتونو څخه دومره خفه کیـږي چـې خپـل نبي (صلی الله علیه وسلم) ته فرمایي چې ستا ورسره هېڅ اړیکه نشـته، یعنـې هغـوی دومره بې قدره شول چې راتلونکو ته یې د اقتداء هـېڅ ضرورت نشـته. دا قصـه اللـه

تعالی مونږ ته د درس لپاره بیانوي چې که تاسو هم اختلاف وکړ نو داسې به مو بې قدره کړم لکه پخواني امتونه.

**۵-: اتحاد د الله تعالی هغه امر دی چې د جنتونو، او خپلې ملتیا وعدې یې پرې کړې دي**

عمر بن الخطاب رضي الله عنه د خپلې یوې اوږدې خطبې په ترځ کې وویل: عَلَيْكُمْ بِالْجَمَاعَةِ، وَإِيَّاكُمْ وَالْفُرْقَةَ؛ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ مَعَ الْوَاحِدِ، وَهُوَ مِنْ الِاثْنَيْنِ أَبْعَدُ، مَنْ أَرَادَ بُحْبُوحَةَ الْجَنَّةِ فَلْيَلْزَمِ الْجَمَاعَةَ [۵۵].

ژباړه: تاسو باندې د جماعت ملګرتیا لازمه ده! او ځان وساتئ له جدا والي څخه! ځکه شیطان له یوه سره وي او له دوو نه لرې وي، څوک چې د جنت بحبوحه (هغه منځ او اعلی مقام) غواړي، نو له جماعت سره دې ځان ټینګ کړي.

کله چې یو څوک اختلافاتو ته لمن وهي په ډېر کم وخت کې له خپل جهادي امیر، خپل جهادي ګروپ او د جهاد له صف څخه محرومیږي او بیا نو چې کله د مجاهدینو له ټولي یو لوېشت هم لرې شي د شیطان سلطه پرې زیاته شي او بیا یې د ځان خواته نږدې کوي. د روسانو په خلاف د افغانانو جهاد راوښودله چې کومو کسانو اختلاف وکړ آخر د شیطان غېږې ته ولوېدل.

ځکه د ابن عمر رضي اله عنهما د روایت سره سم رسول الله صلی اللّه علیه و سلم فرمایي چې: إ

ِنَّ اللهَ لَا يَجْمَعُ أُمَّتِي عَلَى ضَلَالَةٍ، وَيَدُ اللهِ مَعَ الْجَمَاعَةِ، وَمَنْ شَذَّ شَذَّ إِلَى النَّارِ [۵۶]. یعنې: زما امت الله تعالی په ګمراهۍ نه راټولوي، د اللّه تعالی لاس د جماعت پر سر دی او څوک چې تنها شو، تنها به شي په جهنم کې.

[۵۵] (الترمذي/ بَابُ مَا جَاءَ فِي لُزُومِ الجَمَاعَةِ/ رقم الحديث: ۲۱۶۵)

[۵۶] (الترمذي/ بَابُ مَا جَاءَ فِي لُزُومِ الجَمَاعَةِ/ رقم الحديث: ۲۱۶۷)

لله الحمد: زمونږ اوسنی اسلامي امارت چې د زبـده علـماوو پـه اتفـاق راجـوړ دی هېڅکله به د گمراهۍ لور ته لاړ نشي، او که څوک پکې د اختلاف د پیدا کېدو هڅې کوي اللّٰه تعالی به یې جهنم ته ورسوي.

## ٦-: یووالی هغه قوت دی چې پر شیطانانو د بریا راز پکې نغښتی دی

هر مؤمن او په ځانگړې توگه مجاهد په خپل مقابل کـې څلـور دښـمنان لـري: لومړی: نفس، دوهم: شیطان، دریم: منافق، څلورم: حربي کـافر. خـو د دې ټولـو پـه مقابل کې ثابت قدمه پاتې کېدلو لپاره تر ټولو ستر سبب اتفاق دی، او د اختلاف په حالت کې به دا څلور واړه په مونږ بریالي وي.

له معاذ بن جبل رضي اللّٰه عنه څخه روایت دی چې رسول اللّٰه صلی اللّٰـه علیـه و سلم وفرمایل:

إِنَّ الشَّيْطَانَ ذِئْبُ الْإِنْسَانِ، كَذِئْبِ الْغَـنَمِ، يَأْخُـذُ الشَّـاةَ الْقَاصِـيَةَ، وَالنَّاحِيَـةَ، وَإِيَّاكُمْ وَالشِّعَابَ، وَعَلَيْكُمْ بِالْجَمَاعَةِ وَالْعَامَّةِ. (٥٧)

یعنې: شیطان د انسانانو داسې لېوه دی؛ لکه د رمې لېوه. هغـه لـه نـورو لـرې او جدا پسه رانیسي. نو تاسو هم ځان وساتئ له کږو لارو څخه! او ځان له عام جماعت سره یو ځای کړئ!

که مونږ له جماعت او خپل گروپ سره اختلاف وکړو، نفس به مـو راتـه وایـي چې: ته خو ډېر لوی سړی یې ولـې دې امیـر او ملگـري لـه خپلـې خـبرې څخـه نـه تېرېږي چې ته تېرېږې؟! شیطان به درتـه وایـي چـې سـتا حـق دی بایـد لـه لـه نـورو ځانگړی واوسې! منافق به د نورو پاکو مجاهدینو بدۍ درته بیانوي او حربي کافر بـه دې ښه په آسانه له مخې څخه لرې کړي. خو که زه او ته ځان له جهادي ټـولي سره

---

(٥٧)(مسند أحمد طبع الرسالة (٣٦/ ٤٢١)

داسې یو ځای کړو چې د اختلاف تصور مو د ذهن په سلمه کې هم ونګرځي نو بیا دا یو هم راباندې نشي بریالی کېدلی.

**۷-: د اتفاق د اهمیت له امله اللّٰه تعالی د اختلاف کوونکو د اصلاح او قتال امر کړی**

د انسانانو وژل او بیا په خاصه توګه د مسلمانانو وژل ډېر سخت حکم دی، خو د اللّٰه تعالی او رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه و سلم د امر په اساس اختلاف تر دې هم سخت دی، ځکه خو اللّٰه تعالی فرمایي:

**وَإِن طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا فَإِن بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الأُخْرَى فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ إِلَى أَمْرِ الله فَإِن فَاءَتْ فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَأَقْسِطُوا إِنَّ الله يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ (الحجرات/۹)**

ژباړه: «که چېرې دوه ډلې د مؤمنانو (په خپلو منځو کې) سره په جنګ او جګړه کې ولویږي پس روغه او صلح وکړئ (ای نورو مؤمنانو) په منځ د هغو دواړو جنګ کوونکو کې په نصیحت سره او په بلنې سره حکم د اللّٰه او د رسول اللّٰه ته، نو که ظلم او تېری وکړ یوې له دغو دواړو په هغې بلې ډلې باندې یعنې چې صلح قبوله نه کړي او حکم د اللّٰه او رسول ته راضي نشي پس جنګ کوئ تاسي ټول ای مؤمنانو له هغې (ډلې) سره چې ظلم او تجاوز کوي (پر هغې بلې مظلومې ډلې باندې) ترهغه پورې چې بیرته راوګرځي دوی حکم د اللّٰه ته او غاړه ورته کیږدي او که چیرې وګرځیدله (دغه ډله بې انصافه له ظلم نه او د اللّٰه تعالی حکم یې بیرته ومانه) پس صلح او روغه وکړئ تاسي په منځ د دوی کې په عدل او انصاف سره او مه کو ئ ملګرتیا له ظالمې ډلې سره په نامه د ننګ غیرت او داسي نرو سره، بلکې تل د شرع تابعان اوسئ، عدل او انصاف کوئ تاسي ای مؤمنانو په هر کار کې ځکه چې بېشکه اللّٰه تعالی دوست لري عدل او انصاف کونکي (په قول او په فعل کې).

په دې آيت کريمه کې الله تعالی له يوې خوا مؤمنان ورته وايي خو له بلې خوا يې د اختلاف په حالت کې د قتال امر کوي تر څو چې هغوی د الله تعالی امر ته راوګرځي.

همدا راز رسول الله صلی الله عليه وسلم د اختلاف پيدا کوونکي د وژلو په باره کې دومره سختي کوي چې هر څوک وي ويې وژنئ! يعنې دې ته مه ګورئ چې عالم دی يا مجاهد دی يا شيخ دی، بس چې د امت په منځ کې اختلاف پيدا کوي ويې وژنئ! البته دا خبره ياد ساتل پکار ده چې هيڅ يو مجاهد پر خپل سر (د امير له امر، اجازې او د قاضي له فيصلې پرته) د چاه د وژلو اختيار او صلاحيت نه لري، هر اقدام چې کوو داسلامي امارت د لائحې او د مشرتابه دامر په اساس به يې ترسره کوو.

له عرفجه بن شريح اشجعي رضي الله عنه څخه روايت دی چې ما رسول الله صلی الله عليه و سلم وليد چې په منبر يې خطبه ويله او ويل يې:

إِنَّهُ سَيَكُونُ بَعْدِي هَنَاتٌ وَ هَنَاتٌ، فَمَنْ رَأَيْتُمُوهُ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ، أَوْ يُرِيدُ يُفَرِّقُ أَمْرَ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَائِنًا مَنْ كَانَ فَاقْتُلُوهُ، فَإِنَّ يَدَ الله عَلَى الْجَمَاعَةِ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ مَعَ مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ يَرْكُضُ. [۵۸]

يعنې: زما نه وروسته به فتنې او فتنې وي نو څوک چې تاسو وليدل چې له جماعت څخه جدا کيږي، او غواړي چې د محمد صلی الله عليه و سلم د امت کارونه ټوټه ټوټه کړي، نو ويې وژنئ! هر څوک چې وي- وي دې!، ځکه د الله يد (مرسته او معاونت) له جماعت سره دی. نو يقينا شيطان له هغه چا سره پښې ښوروي چې جماعت پرېږدي.

[۵۸](النسائي/ باب قَتْلُ مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ/ رقم الحديث: ۴۰۲۰)

د رسول الله صلی الله علیه و سلم د كَائِنًا مَنْ كَانَ فَاقْتُلُوه تشدید ته که لږ ځیر شو نو راڅرگنده به شي چې اختلاف څومره بد شی دی، او بایـد مجاهـدین څـومره اجتناب ترې وکړي.

مجاهده وروره! که ته نن په وړه خبره اختلاف وکړې:

ستا اختلاف به غټ او د دښمن په گټه تمام شي. د میلیونونو شهیدانو وینې بـه ستا د اختلاف قرباني شي. ستا خپل ټول اعمال به ضایع، اجر به دې خـراب، لښـکر به دې مات او خدای مکړه خسر الدنیا والآخرة ته به ورسیږې!

❋ ❋ ❋

# له بیت المال سره احتیاط کول

مجاهد في سبیل الله دا مسئولیت هم پـه غـاړه لـري چـې د بیـت المـال سـاتنه وکړي. د امت د عروج پر مهال مالي او اقتصادي منابع ا وسرچینې دومره وې چـې د بیت المال بسنه او کفایت پرې کیده او دا ځکه چې هغه مهال د اسـلامي خلافـت د بیت المال خزانې په زکاتونو، خراجونو، او غنیمتونو د تـل لپـاره ډکـې وې. خـو؛ پـه معاصر وخت کـې چـې د امـت د سـاتنې مسـئولیت صرف او صرف مجاهـدینو تـه ورپاتې دی، همدومره امت مجاهدینو ته شـا ګرځـولې ده، او د کفـري ځواکونـو لـه وېرې خپل واجبي صدقات هم مجاهدینو ته نشي ورکولی. همدا راز د کفر او نفـاق لښکرې هم هغو خلکو تـه ډېـر عذابونـه ورکـوي، او راز راز بندیزونـه پـر ې لګـوي څوک چې د جهادي مقاومت د مالي انفاق هڅې کوي.

نو بناء هم له شرعي پلوه او هـم د پورتـه ذکـر شـوي ضرورت لـه اړخـه د بیـت المال د ساتنې او له غلول څخه د ځان بچ کولو فریضـه هـر مجاهـد تـه راجع ده او باید چې دا څو خبرې هېڅکله هېرې نکړي.

### ۱-: خیانت الله تعالی رابر سېره کوي

تر هر څه مهمه خبره دا ده چې: د مسلمان او په تېره بیا د مجاهـد د ژونـد ټـول کارونه د هغې دنیا لپاره وي. د دې فاني نړۍ ټول مشکلات یې د دې لپـاره پـه ځـان منلي وي تر څو خپله تلپاتې دنیا پـرې ودانـه کـړي. اللّـه تعـالی پخپـل کـلام کـې دا وضاحت کړی چې په دې دنیا کې که یو څوک په خیانت سره یو شی پټ هم کړي د محشر په ورځ به یې خامخا راوړي او ټولو ته به ښکاره کیږي. اللّـه تعـالی فرمـایي چې:

وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَغُلَّ وَمَن يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ) آل عمران/۱۶۱)

ژباړه: «او نه ښايي هيڅ نبي ته چې څه شی پټ کړي، او هـر څـوک چـې څـه شی پټوي نو رابه شي (دا پټوونکی) په هغه سره چې ده پـټ کـړی وي پـه ورځـې د قيامت کې، بيا به پوره ورکړل شي هر نفس ته (جزا د) هغه عمل چې کړی وي ده او پردوی به ظلم ونه کړی شي (په تزئيد د عذاب يا تنقيص د ثواب کې)».

همدا راز د محشر په ورځ په بيت المال کې د غلول کوونکي د حالت پـه اړه د ابن عمر رضي الله عنهما په روايت کې راځـي چـې: أَنَّ رَسُـولَ اللهِ صَـلَّى اللهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّ الْغَادِرَ يُنْصَبُ لَهُ لِوَاءٌيَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَيُقَالُ: هَذِهِ غَدْرَةُ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ. (٥٩) يعنې: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: غدر کوونکي ته به د محشر پـه ورځ لوی بيرغ لګېدلی وي او ويل کيږي به چې دا د فلانکي د فلانکي د زوی غدر دی.

نو کله چې د قيامت په ورځ هر څه ظاهريږي بيا نو پـه کومـو سـترګو پـه بيـت المال کې خيانت کولی شو؟؟؟

## ۲-: د محشر د ورځې شرمېدل

د رسول الله صلى الله عليه وسلم په احاديثو کې ډېری وخت د غنيمت په مـال کې خيانت ته غلول ويل شوی دی. خو هغه علماء کرام چې د غلول معنا عامه کوي او هر هغه خيانت ته يې شاملوي چې له بيت المال سره شوی وي، دا خبره پـه دليـل کې وړاندې کوي چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: هَدَايَا العُمَّالِ غُلُـولٌ. ژباړه: د عاملينو هديه غلول ده.

دا بېله موضوع ده چې دا ځای يې د تفصيلي بحث نـه دی، خـو صرف دومـره واضح کول غواړم چې که په حديث کې غلول ياد شوی دی له دې څخـه مـراد هـر هغه مال دی چې د مسلمانانو تر بيت المال پورې تعلق ولري که هغه غنيمـت وي او که په بله طريقه لاس ته راغلی وي.

(٥٩)(البخاري/ بَابُ مَا يُدْعَى النَّاسُ بِآبَائِهِمْ/ رقم الحديث: ٦١٧٨)

له عباده بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دی: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْخُذُ الْوَبَرَةَ مِنْ جَنْبِ الْبَعِيرِ مِنَ الْمَغْنَمِ، ثُمَّ يَقُولُ: مَا لِي فِيهِ إِلَّا مِثْلُ مَا لِأَحَدِكُمْ مِنْهُ، إِيَّاكُمْ وَالْغُلُولَ؛ فَإِنَّ الْغُلُولَ خِزْيٌ عَلَى صَاحِبِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، أَدُّوا الْخَيْطَ وَالْمِخْيَطَ، وَمَا فَوْقَ ذَلِكَ... يعني: رسول الله صلی الله علیه وسلم به د غنيمت د اوښ له څنګ څخه يو وېښته راواخيست بيا به يې وفرمايل په دې کې زما صرف دغومره حق دی لکه په تاسو کې چې د يوه حق دی. له غلول څخه ځان وساتئ! ځکه غلول د غلول کوونکي لپاره د محشر په ورځ عار او شرمول دي، تار او ستن هم ادا کړئ! او يا له هغو څخه پورته شيان (وسپارئ).

همدا راز په يو بل حديث کې چې عرباض رضي الله عنه روايت کړی راځي چې: أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْخُذُ الْوَبَرَةَ مِنْ فَيْءِ الله عَزَّ وَجَلَّ، فَيَقُولُ: مَا لِي مِنْ هَذَا إِلَّا مِثْلُ مَا لِأَحَدِكُمْ إِلَّا الْخُمُسَ، وَهُوَ مَرْدُودٌ فِيكُمْ، فَأَدُّوا الْخَيْطَ وَالْمِخْيَطَ فَمَا فَوْقَهُمَا، وَإِيَّاكُمْ وَالْغُلُولَ؛ فَإِنَّهُ عَارٌ وَشَنَارٌ عَلَى صَاحِبِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. [٦٠] ژباړه: عرباض رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم د فئ (غنيمت) د مال د وړيو يو وېښته راواخيست او ويل يې: په دې کې زما دومره حق دی څومره چې ستاسو د يوه حق دی، پرته له خمس څخه، او خمس هم بېرته تاسو ته درکول کيږي، نو تاسو ستن او تار او تر هغه لوړ هر څه وسپارئ! او له غلول څخه ځان وساتئ! ځکه غلول د هغه کوونکي ته د محشر په ورځ د شرم او پيغور خبره ده.

### ۳-: په غلول کوونکي د محشر په ورځ داسې حالت راځي چې هيڅوک به يې هم مرسته نه کوي.

ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې: قَامَ فِينَا النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْغُلُولَ، فَعَظَّمَهُ وَعَظَّمَ أَمْرَهُ. قَالَ: لَاأُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ شَاةٌ لَهَا

[٦٠](مسند أحمد طبع: الرسالة (٢٨/ ٣٨٥)

ثُغَاءٌ، عَلَى رَقَبَتِهِ فَرَسٌ لَهُ حَمْحَمَةٌ، يَقُولُ: يَا رَسُــولَ الله، أَغِثْـنِي. فَـأَقُولُ لَا أَمْلِـكُ لَـكَ شَيْئًا، قَدْ أَبْلَغْتُكَ. وَعَلَى رَقَبَتِهِ بَعِيرٌ لَهُ رُغَاءٌ يَقُـولُ: يَـا رَسُـولَ الله، أَغِثْـنِي. فَـأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، قَدْ أَبْلَغْتُكَ. وَعَلَى رَقَبَتِهِ صَامِتٌ فَيَقُولُ: يَا رَسُولَ الله، أَغِثْنِي. فَـأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، قَدْ أَبْلَغْتُكَ. أَوْ عَلَى رَقَبَتِهِ رِقَاعٌ تَخْفِقُ فَيَقُولُ: يَا رَسُولَ الله، أَغِثْنِي. فَأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، قَدْ أَبْلَغْتُكَ. [٦١] يعنې: رسول الله صلی الله علیـه و سـلم پـه مونږ کې ودرېد او غلول يې ياد کړ. غلول او د غلول کار يـې ښـه غـټ کـړ. بيـا يـې وويل: د محشر په ورځ تاسو کې څوک ونه موموم چې پسه يې په څټ سـپور وي او رمباړې وهي، نه مو داسې وموموم چې په څټ يې آس سپور وي او ششنيړي، بيـا بـه وايي چې يا رسول الله ما سره مرسته وکړه! او زه به وايم چې زما هېڅ پـه وس نـه دي پوره، ما درته خبره رسولې ده. يا به يې په څټ باندې اوښ وي او نارې بـه وهـي، او وايي به چې يا رسول الله زما مرسته وکړه! او زه به وايم چې زما هېڅ پـه وس نـه دي، ما په خپل وخت کې درته خبره رسولې ده. يا مو پداسې حال کي ونه موموم چـې پـه څټ به يې يو صامت شی وي او وايي به چې يا رسول الله زما مرسته وکـړه! او زه بـه وايم چې زما هېڅ په وس نه دي، ما درته خبره رسولې ده. او يا به يې په څـټ ټـوټې وي چي رپېږي به او وايي به چې يا رسول الله زما مرسته وکړه! او زه به وايم چې زمـا هېڅ په وس نه دي ما درته خبره رسولې ده.

### ۴-: خيانت هېڅکله د مؤمن صفت نشي کېدی

له ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسـول اللّـه صـلی اللّـه عليـه و سلم وفرمايل: يُطْبَعُ الْمُؤْمِنُ عَلَى الْخِلَالِ كُلِّهَا إِلَّا الْخِيَانَةَ وَالْكَذِبَ [٦٢]. يعنې: په مـؤمن کې هر صفت راتللی شي، خو؛ خيانت او دروغ پکې نه راځي (يعنې مؤمن هېڅکله خيانت نه کوي او نه هم کله دروغ وايي)

[٦١](صحيح المسلم في الإمارة باب غلظ تحريم الغلول رقم ۱۸۳۱)

[٦٢](مسند أحمد ط الرسالة (۳٦/ ۵۰۴)

### ۵-: که د جګړې په ډګر کې ټول ترلاسه کړي شيان و نه سپارل غلول دی

په معاصر جهاد کې داسې ډېر حالتونه شته چې شيطان مجاهد ته د غلول لاره برابروي، او هغه څه چې د بيت المال لپاره راغلي وي آخر يې پرې شخصي-استعمالوي، نو مهمه دا ده چې هر هغه حالت چې امير مو رابانـدې خبر نـه وي او اجازه يې نه وي کړې، او د هغه له خبرېدو پرته کوم تصرف کوو دا غلول دی.

عدي بن عميره الکندي رضي الله عنه فرمايي چې: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ مِـنْكُمْ عَلَى عَمَـلٍ، فَكَتَمَنَـا مِخْيَطًـا فَمَـا فَوْقَـهُ كَانَ غُلُولًا يَأْتِي بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. فَقَامَ إِلَيْهِ رَجُلٌ أَسْوَدُ مِنَ الْأَنْصَارِ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، اقْبَلْ عَنِّي عَمَلَكَ. قَالَ: وَمَا لَكَ؟ قَالَ: سَمِعْتُكَ تَقُولُ: كَذَا وَكَذَا. قَالَ: وَأَنَـا أَقُولُهُ الْآنَ، مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ مِنْكُمْ عَلَى عَمَلٍ فَلْيَجِئْ بِقَلِيلِهِ وَكَثِيرِهِ، فَمَا أُوتِيَ مِنْهُ أَخَذَ، وَمَا نُهِيَ عَنْهُ انْتَهَى. (٦٣)

ژباړه: ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واورېدل چې ويـل يـې: مـونږ چې څوک په کوم کار مقرر کړ او هغه رانه يو تار او ستن او يا تر دې ډېـر شـی پـټ کړل دا به د قيامت په ورځ غلول وي. د انصارو يو تور سړی ورتـه پاڅېـد لکـه اوس چې ورته ګورم نو ويې ويل: اې د الله رسوله! له ما نه دا خپل عمل قبول کړه! رسـول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: په تا څه شوي هغه وويل چې ما له تا څخه داسـې داسې خبرې واورېدلې. هغه وفرمايل: زه يې اوس هم وايـم: څوک چې مونږ په کـوم کار باندې مقرر کړ هغه دې لږ او ډېر هر څه راوړي کوم شی چې ورکول کيږي هغه به اخلي او کوم شی چې ترېنه منع کيږي هغه نه به ځان منع کوي.

د پورتني حديث په اساس لازمه ده چې په بيت المال کې هېڅکلـه پخپـل سر تصرف ونکړو او هر څه چې وي هغه خپل امير ته وسپارو، که هغه غنيمت وي او يا د کوم مسلمان له لوري صدقه.

---

(٦٣)(مسلم، بَابُ تَحْرِيمِ هَدَايَا الْعُمَّالِ/ رقم الحديث: ۱۸۳۳)

### ٦-: بیت المال کې خیانت شهادت له منځه وړي

امام مسلم رحمه الله روایت کړی چې: عمر ابن الخطاب رضي الله عنه فرمايي چې: د خیبر په ورځ باندې د رسول الله صلی اللـه علیـه وسـلم ځینـې ملګـري چـې راګرځېدل نو ویل یې چې فلانکی شهید دی، فلانکی شهید دی تـر څـو چـې د یـو کس نوم راغی نو ویې ویل چې فلانکی شهید دی. رسول الله صلی الله علیـه وسـلم وفرمایل: هېڅکله نه! ما هغه په اور کې ولیـد د هغـه څـادر لـه املـه چـې هغـه پکـې خیانت کړی و، بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: اې د خطـاب زویـه! لاړ شه او په خلکو کې غږ وکړه چې جنت ته به نشي داخلېدلی مګـر صرف مؤمنـان بـه داخلیږي. عمر رضي الله عنه وایي چې زه ووتـم او په خلکو کې مې نارې کړې چې جنت ته صرف مؤمنان داخلېدلی شي او بس.

پورتني حدیث ته که لږ فکر وکړو نو راتـه معلومـه بـه شي چـې غلـول څـومره سخته ګناه ده. په جهادي صف کې شهادت تـه ځـان رسـول د هـر مجاهـد رښـتینی ارمان وي خو باید هر مجاهد له ځان سره فکر وکړي که چېرته په بیت المال کـې لـه غلول څخه ځان ونه ساتو، نو خدای مکړه هغه حالت به راباندې راځي چې ظاهرا به خلک راته شـهید وایـي خـو د اللـه تعـالی پـه وړانـدې بـه شـهیدان نـه! بلکـې د اور مستحقین یو.

### ٧-: په غلول کې کم او زیات مهم نه دی، بلکې تر ویش وړانـدې لـږ شـی اخیستل هم غلول دی

ابوهریره رضي الله عنه قصه کوي چې: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّمَ إِلَى خَيْبَرَ، فَفَتَحَ اللهُ عَلَيْنَا، فَلَمْ نَغْنَمْ ذَهَبًا وَلَا وَرِقًا، غَنِمْنَا الْمَتَاعَ وَالطَّعَـامَ وَالثِّيَـابَ، ثُمَّ انْطَلَقْنَا إِلَى الْوَادِي وَمَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدٌ لَهُ، وَهَبَهُ لَهُ رَجُلٌ مِـنْ جُذَامَ يُدْعَى رِفَاعَةَ بْنَ زَيْدٍ مِنْ بَنِي الضُّبَيْبِ، فَلَمَّا نَزَلْنَا الْوَادِيَ، قَامَ عَبْـدُ رَسُـولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحُلُّ رَحْلَهُ، فَرُمِيَ بِسَهْمٍ، فَكَانَ فِيهِ حَتْفُهُ، فَقُلْنَا: هَنِيئًا لَهُ الشَّهَادَةُ

يَا رَسُولَ الله. قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " كَلَّا، وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ إِنَّ الشَّمْلَةَ لَتَلْتَهِبُ عَلَيْهِ نَارًا، أَخَذَهَا مِنَ الْغَنَائِمِ يَوْمَ خَيْبَرَ لَمْ تُصِبْهَا الْمَقَاسِمُ ". قَالَ: فَفَزِعَ النَّاسُ، فَجَاءَ رَجُلٌ بِشِرَاكٍ أَوْ شِرَاكَيْنِ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ الله، أَصَبْتُ يَوْمَ خَيْبَرَ. فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: شِرَاكٌ مِنْ نَارٍ، أَوْ شِرَاكَانِ مِنْ نَارٍ[٦٤]. يعني: مونږ له رسول الله صلی الله علیه و سلم سره خیبر ته ووتو، الله تعالی مونږ ته فتحه راکړه، مونږ سره زر او سپین ونه ګټل بلکې غنیمت کې مونږ ته سامان، خوراک او کالي په لاس راغلل. بیا د دښتې خواته لاړو، د رسول الله صلی اللّه علیه و سلم یو غلام هم راسره ملګری و. د جذام یوه سړي هبه کې ورکړی و چې خلکو رفاعة بن زید بللو. مونږ چې دښته کې ډېره کېدلو د رسول اللّه صلی اللّه علیه و سلم غلام پاڅېد او د هغه صلی الله علیه و سلم له سوارلۍ څخه یې بار ښکته کولو. په یوه غشي ولګېد او همدې کې یې مړ شو. نو مونږ وویل: د هغه شهادت دې درته مبارک وي اې د الله رسوله! رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: هېڅکله نه! په هغه رب مې دې قسم وي چې د محمد (صلی الله علیه وسلم) نفس یې په لاس کې دی: هغه ټوټه اوس هم پرې اور بلوي چې د خیبر په ورځ یې تر وېش وړاندې اخیستې وه. راوي وایي چې: خلک سخت وویرېدل، یو سړی راغی چې یو یا دوه تسمې (د بوټونو یا څپلۍ بند) ورسره وې او ویې ویل: یا رسول الله دا مې د خیبر په ورځ اخیستې وې. رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: یوه تسمه هم د اور ده "دوه تسمې هم د اور دي" یعني په دواړو سړی داور مستحق کیدای شي. استغفر الله تعالی

د پورتني حدیث له تشریح څخه څو خبرې څرګندیږي: لومړی دا چې غلول که هر څوک وکړي سزا یې ډېره سخته ده، ځکه په یاده کیسه کې دا ظاهري شهید عادي سړی نه و، بلکې د رسول الله صلی الله علیه و سلم خاص خادم و. دوهمه دا چې که مجاهد په څومره مهم کار هم لګیا وي بیا هم د غلول له سزا څخه نشي-بچ

[٦٤](مسلم، بَابُ غِلَظِ تَحْرِيمِ الْغُلُولِ، وَأَنَّهُ لاَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلاَّ الْمُؤْمِنُونَ/ رقم الحديث: ۱۸۳)

کېدلی، ځکه دا غلام د رسول الله صلی الله علیه و سلم د خدمت پر مهال پـه غشي- لګېدلی خو دې خدمت یې د غلول له سزا څخه بچ نکړی شو. او دریمه دا چې کـه غلول په کم شي کې هم وي بیا هم غلول دی، د بخاري شریف پـه یـوه بـل روایـت کې د همدې غلام نوم کرکره ښودل شوی او د غلـول انـدازه یـې یـو څـادر ښـودل شوی. که څه هم پخپله څادر وړوکی شی دی، خو کله چې د رسول الله صـلی اللّـه علیه و سلم تر خبرو ورسته یو کس تسمې راوړي نو د تسمو قیمت به هېڅکلـه لـس افغانیو ته هم ونه رسیږي، خو رسول الله صلی الله علیه وسلم یې د اور تسمې ګڼي.

## ۸-: په غلول سره مجاهد هم د رسول الله صلی الله علیه و سلم له لمانځـه بې برخې کیږي

د رسول الله صلی الله علیه و سلم له لـوري د یـو چـا جنـازه کېـدل د نومـوړي لپاره ستر سعادت دی او هغه ځکه چې د رسول الله صلی الله علیه و سـلم لـه لـوري یو چا ته د مغفرت دعا هېڅکله نه ردیږي، خو راځئ! په هغه حدیث فکر وکړو چې د غلول له امله د رسول الله صلی الله علیه وسلم لـه لمانځـه څخـه صـحابي هـم بـې برخې شوی. عنَ زَيْد بْن خَالِدٍ الْجُهَنِيَّ، يُحَدِّثُ أَنَّ رَجُلًا مِـنَ الْمُسْـلِمِينَ تُـوُفِّيَ بِخَيْـبَرَ، وَأَنَّهُ ذُكِرَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ. قَالَ: فَتَغَيَّرَتْ وُجُوهُ الْقَوْمِ لِذَلِكَ، فَلَمَّا رَأَى الَّذِي بِهِمْ قَالَ: إِنَّ صَاحِبَكُمْ غَلَّ فِي سَبِيلِ اللهِ، فَفَتَّشْـنَا مَتَاعَهُ، فَوَجَدْنَا فِيهِ خَرَزًا مِنْ خَرَزِ الْيَهُودِ مَا يُسَاوِي دِرْهَمَـيْنِ [٦٥]. ژبـاړه: لـه زیـد بـن خالد جهني رضي الله عنه څخه روایت دی چې د مسلمانانو یو کس د خیبر په ورځ مړ شو، کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته (د جنازې) وویل شـول، نـو هغـه (صلی الله علیه و سلم) وفرمایل: پخپل ملګري مو لمونځ وکړئ! راوي وایـي چـې د خلکو څېرې بدلې شوې، کله چې رسول الله صلی الله علیه و سلم دا حال ولید ویې

[٦٥](مسند أحمد طبع الرسالة (٢٨/ ٢٥٧)

ويل: ستاسـو ملگـري د اللّـه پـه لاره کـې غلـول کـړی دی. (راوي وايـي) مـونږ يـې سامانونه ولټول نو د يهودو يو خرز مو وموند چې د دوو درهمـو قيمـت يـې هـم نـه درلود.

## ۹-: غوره دا ده چې له بيت المال څخه (څه) ونه غوښتل شي

له عبدالله بن السعدي نه روايت دی: قال: أَنَّهُ قَدِمَ عَلَى عُمَرَ فِي خِلَافَتِهِ، فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: أَلَمْ أُحَدَّثْ أَنَّكَ تَلِيَ مِنْ أَعْمَالِ النَّاسِ أَعْمَالًا، فَإِذَا أُعْطِيتَ الْعُمَالَةَ كَرِهْتَهَا؟ فَقُلْتُ: بَلَى. فَقَالَ عُمَرُ: مَا تُرِيدُ إِلَى ذَلِكَ؟ قُلْتُ: إِنَّ لِي أَفْرَاسًا وَأَعْبُدًا، وَأَنَا بِخَيْرٍ، وَأُرِيدُ أَنْ تَكُونَ عُمَالَتِي صَدَقَةً عَلَى الْمُسْلِمِينَ. قَالَ عُمَرُ: لَا تَفْعَلْ؛ فَإِنِّي كُنْتُ أَرَدْتُ الَّذِي أَرَدْتَ، فَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِينِي الْعَطَاءَ، فَأَقُولُ: أَعْطِهِ أَفْقَرَ إِلَيْهِ مِنِّي. حَتَّى أَعْطَانِي مَرَّةً مَالًا، فَقُلْتُ: أَعْطِهِ أَفْقَرَ إِلَيْهِ مِنِّي. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خُذْهُ فَتَمَوَّلْهُ وَتَصَدَّقْ بِهِ، فَمَا جَاءَكَ مِنْ هَذَا الْمَالِ وَأَنْتَ غَيْرُمُشْرِفٍ وَلَا سَائِلٍ فَخُذْهُ، وَإِلَّا فَلَا تُتْبِعْهُ نَفْسَكَ [٦٦]. يعنې: چې هغه عمر رضي الله عنه ته د هغه د خلافت پر مهال راغی، نو عمر رضي الله عنه ورته وويل: آيا زه نه يم خبر شوی چې ته د خلکو د خدمت په کار کې کار کوې خو چې کله د هغه بدله (د بيت المال لخوا اعطاء) درکول شي نو ته يې ښه نه گڼې؟! نو ما ورته وويل: ولې نه (همداسې ده چې کار کوم خو عطا ښه نه گڼم) نو عمر رضي اللّه عنه وفرمايل: دې نه دې هدف څه شی دی؟ ما وويل: زه آسونه او غلامان لرم، زه خپله ښه (اقتصادي) حالت کې يم، او زه غواړم چې زما عماله (د کار کولو بدله) هم مسلمانانو ته صدقه شي. نو عمر رضي الله عنه وويل: داسې مکوه! ځکه زما هم همداسې اراده وه لکه ستا چې ده، نو رسول الله صلى الله عليه و سلم به عطاء راکوله، خو ما به ورته ويل چې تر ما غريب ته يې ورکړه! تر دې چې يو ځل يې مال راکړ او ما ورته وويل چې تر ما غريب ته يې ورکړه! نو رسول الله صلى الله عليه و سلم وفرمايل: دا واخله! مال

[٦٦](بخاري/بَابُ رِزْقِ الحُكَّامِ وَالعَامِلِينَ عَلَيْهَا/رقم الحديث: ٧١٦٢)

يې کړه! (ويې ساته) او صدقه پرې وکړه! ځکه له دې مال څخه چې کوم درته راشي او ته ورته پورته کېدونکی او يا يې غوښتونکی نه يې نو وايې خله! او کنه نو خپل نفس مه ورپسې کوه! (که نه درکول کېدله بيا يې مه غواړه)

**۱۰-: د بيت المال خازن ته زيری!**

د غلول او خيانت کومې خبرې چې پورته يادې شوې ډېری وخت له داسې حالاتو سره د ملګرو مالي مسئول يا د بيت المال ساتونکی راګير کيږي، نو بايد ووايم چې که له يوې خوا يې د خيانت په حال کې عذابونه ډېر دي خو په سمه توګه يې ساتلو سره دا بشارت هم شته چې مصرف به يې له بيت المال کړی وي خو اجر به د شخصي صدقې ورکول کيږي. لکه: ابو موسی رضي الله عنه چې فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايل: الْخَـازِنُ الْمُسْـلِمُ الْأَمِـينُ الَّذِي يُنْفِـذُ. وَرُبَّمَا قَالَ: يُعْطِي مَا أُمِرَ بِهِ كَامِلًا مُوَفَّرًا طَيِّبٌ بِهِ نَفْسُهُ، فَيَدْفَعُهُ إِلَى الَّذِي أُمِـرَ لَهُ بِـهِ أَحَدُ الْمُتَصَدِّقَيْنِ [٦٧]. ژباړه: د بيت المال مسلمان او امين ساتونکی چې د امر سره سم په کامله طريقه او د زړه له خوښی هغو خلکو ته ورکړه کوي چې امر ورته کيږي دا هم يو له صدقه کوونکو څخه دی.

**۱۱-: له بيت المال سره بايد څه وشي؟ (درې مهمې خبرې)**

ګرانه مجاهده! له پورتنيو ګڼو آيتونو او احاديثو څخه به درمعلومه شوې وي چې لازمه ده د بيت المال هغسې ساتنه او استعمال وکړو په کومه طريقه چې شريعت راته امر کوي. د بيت المال د امانت په اړه دا درې خبرې هېڅکله مه هېروه!

لومړی: هغه څه چې ستا حق نه دی له هغه ځان وساته!

معنا دا چې داسې هېڅکله مه وايه چې زه هم د بيت المال يم نو زه خو يې بايد مصرف کړم. زه دا منم چې تا خپل ټول ژوند د همدې جهاد لپاره وقف کړی

---

[٦٧] (رواه مسلم في الزكاة باب أجر الخازن الأمين والمرأة إذا تصدقت. . رقم ١٠٢٣)

خو کوم شی چې تا ته نه درکول کیږي هېڅکله هغه پخپله مه اخله! بلکې که امیر لږ شی هم درکاوه د زړه له تله پرې شکر ادا کوه!

دوهمه: دا چې د همدې بیت المال مربوط چې کوم شیان په تـا لازمیـږي هغـه په کامله معنا ادا کوه!

که چېرته د بیت المال لخوا تا تـه مـوټر وسـپارل شـو اوس د دې مـوټر مربـوط چې څومره ضرورتونه دي دا ټول په غاړه واخله! او کامله معنا یې ادا کـړه! هسـې نـه چې د بیت المال موټر له تا سره وي خو ملګري د سفر لپاره کرایي مـوټر تـه مجبـور وي. او یا خدای مکړه ټول عمر د بیت المال په خوراک را لوی شو خو اعمالـو کـې مو داسې سستي وي چې الله تعالی مو پرې ونیسي.

دریمه: دا چې د بیت المال په ساتنه کې هېڅکله ناغېړي مکوه! (نضرة النعیم)

که څه هم د امیر درته پام نه وي خو د الله تعالی د شاهد ګڼلو په اساس بایـد د بیت المال د شیانو حفاظت تر خپلو شخصي شیانو لس برابره ښه وکړې!

یوه فرضیه

تصور وکړه! ستا خوږ فدایي او مجاهد ملګری حلالوم، له وینو یې سـتا دېـګ ته غوړي، ستا جېب ته پیسـې او سـتا مـوټر سـایکل تـه تېـل اچـوم؛ اوس بـه څـومره احتیاط ورسره کوې؟! نو همدومره باید د بیت المال سره احتیاط وکړې!

* * *

# څلورم باب:

## د مجاهد لپاره مهم صفات

- ښایسته اخلاق د هر مجاهد د ښایست لباس
- ایماني صفت (رښتیا ویل)
- له غیبت څخه ځان ساتل
- د مسلمان عیبونه پټول
- د ژبې ساتنه
- حیاء کول د رښتینو مؤمنینو رښتینی صفت
- الله تعالی ته په هر حالت کې رجوع او توبه کول
- د یتیم کفالت د هر مجاهد حتمي فریضه
- لمونځ او د لمانځه اهمیت
- تهجد، اشراق، استخاره او د حاجت لمونځ
- د الله تعالی ذکر د مجاهد تعرضي توره او دفاعي کلا

## ښایسته اخلاق د هر مجاهد د ښایست لباس

سپېڅلي او ښایسته اخلاق د اللّٰه تعالی هغه نعمت دی چې اللّٰه تعالی یې رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه و سلم ته پخپلو خاصو نعمتونو کې یادوي، او اللّٰه تعالی یې د اخلاقو صفت کوي: ﴿وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ﴾ (القلم/۴) ژباړه: «او بېشکه چې یې ته (ای محمده) هرومرو په خلق خویونو (دین ډېر لوی باندې)».

ښایسته اخلاق د رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه و سلم هغه همېشنی عادت و چې تل به د هر شخص سره په خورا ښو اخلاقو مخامخ کېده. که د رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه و سلم د اخلاقو قصې را اخلو نو شاید د لیکنې خبره زرګونو پاڼو ته ورسېږي، خو دا چې د اللّٰه تعالی خوش اخلاقه رسول صلی اللّٰه علیه وسلم له اللّٰه جل جلاله څخه نور هم د ښو اخلاقو غوښتنه کوي او وایې: (اللّٰهُمَّ أَحْسَنْتَ خَلْقِي فَأَحْسِنْ خُلُقِي. (مسند احمد)) او له بدو اخلاقو څخه اللّٰه تعالی ته پناه وړي (وَاهْدِنِي لِأَحْسَنِ الْأَخْلَاقِ لَا يَهْدِي لِأَحْسَنِهَا إِلَّا أَنْتَ، وَاصْرِفْ عَنِّي سَيِّئَهَا لَا يَصْرِفُ عَنِّي سَيِّئَهَا إِلَّا أَنْتَ (مسلم)) نو مؤمنان او مجاهدین به ولې ښه اخلاق نه کوي؟؟ او ولې به له اللّٰه تعالی څخه د دې خوږ نعمت غوښتنه نه کوي؟؟؟

ښه اخلاق هغه نعمت دی چې په هر حالت کې له انسان سره ملګری وي، معنا دا چې داسې هېڅ حالت نشته چې انسان ته د بد اخلاقۍ امر وشي، بلکې که کمزوری وي او که قوي، که غریب وي او که مالداره، په هر حالت کې د ښو اخلاقو امر ورته شته.

### د اخلاقي مراتبو پوره کېدل د نبوي بعثت ستر هدف

د کوم کال او عمل لپاره چې اللّٰه تعالی پیغمبر رالېږي نو سوچ باید وکړو چې دابه د څومره لوړې درجې کار وي؟؟؟ ابوهریره رضي اللّٰه عنه فرمایي چې رسول

الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: إِنَّمَا بُعِثْتُ لِأُتَمِّمَ صَالِحَ الْأَخْلَاقِ[٦٨]. یقینًا زه د دې لپاره مبعوث شوی یم چې نیک اخلاق پوره کړم.

**نیک اخلاق د کامل ایمان نښه ده**

که مونږ غواړو چې الله تعالی مو په هغو خلکو کې حساب کړي چې ایمان یې کامل دی نو باید اخلاق مو پوره ایماني اخلاق وي، ځکه: ابوهریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا. (سنن ابي داود) یعنې: هغه مؤمنان کامل ایمان لري چې اخلاق یې ښایسته او نیک وي.

نیک اخلاق د الله تعالی او د رسول الله صلی الله علیه و سلم امر دی

ابوذر رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم ما ته وفرمایل: اتَّقِ الله حَيْثُمَا كُنْتَ، وَأَتْبِعِ السَّيِّئَةَ الْحَسَنَةَ تَمْحُهَا، وَخَالِقِ النَّاسَ بِخُلُقٍ حَسَنٍ. (الترمذي) یعنې: هر چېرته چې یې له الله تعالی څخه ووېرېږه! او په بدۍ پسې نیکي وکړه هغه یې لرې کوي، او له خلکو سره په ښایسته اخلاقو ملاقات کوه!

نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم امر خو باید تر هر چا ډېر مجاهدین ملګري عملي کړي.

**نیک اخلاق د رسول الله صلی الله علیه و سلم د محبت او قرب زېری**

د رسول الله صلی الله علیه وسلم محبت او له هغه سره نږدېوالی د هر مؤمن هیله او د هر مجاهد هغه ارمان دی چې د هغه لپاره کلونه انتظار او نادرې سختۍ په ځان تېروي خو په هغه څه چې الله تعالی د رسول الله صلی الله علیه وسلم محبت راپه نصیب کوي ولې به یې نه عملي کوو؟؟ جابر رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: إِنَّ مِنْ أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ، وَأَقْرَبِكُمْ مِنِّي مَجْلِسًا يَوْمَ

[٦٨]( مسند أحمد ط الرسالة (١٤/ ٥١٣)

الْقِيَامَةِ أَحَاسِنَكُمْ أَخْلَاقًا، وَإِنَّ أَبْغَضَكُمْ إِلَيَّ، وَأَبْعَدَكُمْ مِنِّي مَجْلِسًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ: الثَّرْثَارُونَ، وَالْمُتَشَدِّقُونَ، وَالْمُتَفَيْهِقُونَ. قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! قَدْ عَلِمْنَا الثَّرْثَارُونَ، وَالْمُتَشَدِّقُونَ، فَمَا الْمُتَفَيْهِقُونَ؟ قَالَ: الْمُتَكَبِّرُونَ [۶۹]. يعنې: يقينًا په تاسو کې ما ته محبوب او د محشر په ورځ ما ته نږدې هغه کسان دي چې په تاسو کې د نېکو اخلاقو والا دي. او په تاسو کې ما ته مبغوض او له ما نه د لرې مجلس والا د قيامت په ورځ ثرثار (ډېر غږېدونکي) او متشدق (په خبرو کې ډېر تکلف کوونکي) او متفيهقين دي. صحابه کرامو وپوښتل چې: ثرثارون او متشدقون خو مو وپېژندل دا متفيهقين څوک دي؟ رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايل: دا تکبر کوونکي دي.

## ښايسته اخلاق د اعمالو ميزان کې تر هر څه درانه دي

ابودرداء رضي الله عنه فرمايي: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَا شَيْءٌ أَثْقَلُ فِي مِيزَانِ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ خُلُقٍ حَسَنٍ، وَإِنَّ اللهَ لَيُبْغِضُ الْفَاحِشَ الْبَذِيءَ. [۷۰] يعنې: رسول الله صلی الله عليه و سلم فرمايي: د قيامت په ورځ د مؤمن په تله کې تر ښو اخلاقو درونده شی نشته. او د الله تعالی فاحش او سپک سړي بد ايسي. نو بايد هغه اعمال تر هر چا ډېر وکړو چې زمونږ د اعمالو د نېکۍ تله راته درنوي.

## ښايسته اخلاق بايد کم ونه ګڼل شي

هغه کسان چې په عباداتو کې لږ ښه وي، الله تعالی د نوافلو توفيق ورکړی وي نو بيا يې شيطان په داسې طريقې خطا کوي چې بد اخلاقي ترېنه کيږي او دا هېڅ داسې نه ګڼي چې دا بد اخلاق به مې اعمال خراب کړي. نو پکار دا ده چې هېڅکله ښو اخلاقو ته په کمه سترګه ونه ګورو: ابوذر رضي الله عنه فرمايي چې

---

[۶۹] (الترمذي/ بَابُ مَا جَاءَ فِي مَعَالِي الأَخْلَاقِ/ رقم الحديث: ۲۰۱۸)
[۷۰] (الترمذي/ بَابُ مَا جَاءَ فِي حُسْنِ الخُلُقِ/ رقم الحديث: ۲۰۰۲)

رسول الله صلی الله علیه و سلم ما ته وفرمایـل: لَا تَحْقِرَنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ شَيْئًا، وَلَـوْ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ. (مسلم) یعنې: په نیکیو کې هېڅ شی کم مه ګڼه! که څه هـم خپل ورور سره په ورین تندي مخامخ کېدل وي.

## ښایسته اخلاق د همېشني عبادت ثواب لري

ام المؤمنین عائشه رضي الله عنها فرمایي چې ما له رسول الله صلی الله علیـه و سلم څخه واورېـدل: إِنَّ الْمُؤْمِنَ يُدْرِكُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ دَرَجَاتِ قَائِمِ اللَّيْلِ صَـائِمِ النَّهَـارِ [۷۱]. ژباړه: یقینًا مؤمن د ښو اخلاقو له امله د شپې لمـونځ کـوونکي او د ورځـې روژه نیوونکي درجې ته رسېږي.

په ډېره آسانه توګه ډېر لوی اجر ګټـل؟ عـادي ناسـته او پاسـته کـې د روژې او لمانځه بدله ترلاسه کول؟ هو! یواځې په ښو اخلاقو؛ راځئ! چې پـه هـر حالـت کـې ثواب ترلاسه کړو او ښه اخلاق دځان همیشنی عادت وګرځوو.

## ښایسته اخلاق جنت ته د داخلېدلو او د جنت د ضمانت لار ده

ابو امامه رضي الله عنه په یوه اوږده حدیث کې د رسول الله صلی اللـه علیـه و سلم تر دوو ضمانتونو وروسته فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: أَنَا زَعِيمٌ بِبَيْتٍ فِي... وَبِبَيْتٍ فِي أَعْلَى الْجَنَّةِ لِمَنْ حَسُنَ خُلُقُـهُ. [۷۲] یعنـې: زه د هغـه چـا لپاره چې اخلاق یې ښایسته وي د جنت په لوړه مرتبه کې د یوه کور ذمه وار یم.

همدا راز د ابوهریره رضي الله عنه په یوه حدیث کې هم راځي چې لـه رسـول الله صلی الله علیه و سلم څخه پوښتنه وشوه چې کـوم شـی سـړی ډېـر و جنـت تـه داخلـوي؟؟ نـو هغـه صـلی اللـه علیـه و سـلم وفرمایـل: تَقْـوَى الله، وَحُسْـنُ الْخُلُـقِ. (الترمذي) یعنې: تقوا او ښه اخلاق (ډېر خلک جنت ته داخلوي).

---

[۷۱]( مسند أحمد ط الرسالة (۴۰/ ۴۱۴)

[۷۲](ابوداود/ / بَابُ مَا جَاءَ فِي حُسْنِ الخُلُقِ/ رقم الحديث: ٤٨٠٠)

## که مو اخلاق خراب ول د محشر په ورځ به مفلس یو

ابوهریره رضي الله عنه فرمايي چې: رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: أَتَدْرُونَ مَا الْمُفْلِسُ؟ قَالُوا: الْمُفْلِسُ فِينَا مَنْ لَا دِرْهَمَ لَهُ وَلَا مَتَاعَ. فَقَالَ: إِنَّ الْمُفْلِسَ مِنْ أُمَّتِي من يَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِصَلَاةٍ وَصِيَامٍ وَزَكَاةٍ، وَيَأْتِي قَدْ شَتَمَ هَذَا، وَقَذَفَ هَذَا، وَأَكَلَ مَالَ هَذَا، وَسَفَكَ دَمَ هَذَا، وَضَرَبَ هَذَا؛ فَيُعْطَى هَذَا مِنْ حَسَنَاتِهِ، وَهَذَا مِنْ حَسَنَاتِهِ، فَإِنْ فَنِيَتْ حَسَنَاتُهُ قَبْلَ أَنْ يُقْضَى مَا عَلَيْهِ؛ أُخِذَ مِنْ خَطَايَاهُمْ فَطُرِحَتْ عَلَيْهِ، ثُمَّ طُرِحَ فِي النَّارِ[۷۳]. یعني: مفلس پېژنئ؟؟ صحابه کرامو وویل: مفلس په مونږ کې هغه سړی دی چې نه پیسې ولري او نه مال ولري. رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: زما د امت مفلس به د محشر په ورځ له لمونځونو، روژو او زکاتونو سره راشي، خو؛ داسې به وي چې یو کس ته به یې بد رد ویلي وي، په بل نفر باندې به یې تهمت تړلی وي، د دې بل شخص مال به یې خوړلی وي، د دې بل کس به یې وینه توی کړې وي، او دا بل تن به یې وهلی وي؛ نو د دې ذکر شوو کسانو له جملې به د نوموړي حسنات او نیکی یوه کس ته ورکړل شي، بیا به دا بل ته د نوموړي حسنات ورکړل شي، نو که دې کسانو ته د خپلو حقونو تر ورکولو وړاندې یې حسنات خلاص شول، د هغوی ګناهونه به را واخیستل شي او د مفلس په اعمالو به واچول شي او بیا به جهنم ته وغورځول شي.

مجاهدینو ورونو! په دې حدیث باندې له ځان سره غور وکړو: خدای مکړه هغه حالت راباندې رانشي چې د دې دنیا د کفارو اورونه، بمبارونه، چاپې، ډرون او نور هر څه مو په ځان منلي وي خو د محشر په ورځ د مفلس معامله راسره وشي او زمونږ ټول نېک اعمال نورو ته ورکړل شي. نو راځئ! چې له داسې حالاتو څخه ځان وساتو او د تل لپاره نېک اخلاق اختیار او د ځان عادت وګرځوو!!.

* * *

---

[۷۳](المسلم/ بَابُ تَحْرِيمِ الظُّلْمِ/ رقم الحدیث: ۲۵۸۱)

# ایماني صفت (رښتیا ویل)

رښتیا ویل د ایمان بنسټ دی، او دروغ د نفاق اساس دی. که مونږ رښتیا ویل او رښتیاوو سره مو محبت درلود؛ اللّٰه تعالی به رښتینی ایمان رانصیب کړي، او خدای مکړه که مو د دروغو لمن نیولې وه، دروغ به مو آخر نفاق ته رسوي. په یوه زړه کې دروغ او ایمان نه شي ځایدلی، که ځای هم شي ایمان او دروغ به یو بل ته کمین کې وي.

رښتیا ویل د جنت لار ده: له عبداللّٰه رضي الله عنه څخه روایت دی، هغه له رسول الله صلی الله علیه و سلم څخه روایت کوي چې ویې فرمایل: إِنَّ الصِّدْقَ يَهْدِي إِلَى الْبِرِّ، وَإِنَّ الْبِرَّ يَهْدِي إِلَى الْجَنَّةِ، وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَصْدُقُ حَتَّى يَكُونَ صِدِّيقًا، وَإِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِي إِلَى الْفُجُورِ، وَإِنَّ الْفُجُورَ يَهْدِي إِلَى النَّارِ، وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَكْذِبُ حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللهِ كَذَّابًا. [۷٤] ژباړه: یقینًا رښتیا ویل نېکی ته لارښونه کوي، او نیکي جنت ته لارښوونه کوي. او یقینًا یو سړی رښتیا وایي تر څو چې هغه صدیق شي. او یقینًا دروغ ویل فجور (بدوکارونو) ته لارښوونه کوي، او بد کارونه اور (جهنم) ته لارښوونه کوي، او یو سړی دروغ وایي تر څو پورې چې د اللّٰه په وړاندې (کذاب) ډېر دروغژن ولیکل شي. (البخاري)

نو که غواړو چې د اللّٰه تعالی په وړاندې مو نوم صدیق وي نو باید د تل لپاره رښتیا ووایو.

د دروغو په اړه رانقل شوي احادیث دا راښیي چې: رښتیا ویونکي سره اللّٰه تعالی په دنیا کې د عافیت او نیک عمل او په آخرت کې د مغفرت معامله کوي.

د رښتیاوو له امله اللّٰه تعالی د بنده زړه مطمئن کوي او له تزلزل څخه یې ساتي.

---

[۷٤](صحیح المسلم في البر والصلة والآداب باب قبح الكذب وحسن الصدق. . رقم ۲٦۰۷)

د رښتیاوو له امله الله تعالی انسان ته په هر کـار، د انسـان پـه ځـان او اولاد کـې برکت اچوي.

د رښتیاوو له امله الله تعالی د رښتین غم او هم لرې کوي. همدا راز رښتیا ویـل د نجات او خلاصون یواځنی لار ده. د کعب بن مالک قصه یې راته لوی دلیل دی.

د رښتیا ویلو، رښتیني نیت او عمل له امله الله تعالی په بستر باندې مړ شوي تـه هم د شهادت درجه ورکوي.

علماء کرام فرمایي: په ځان باندې رښتیا ویل پـه هغـه ځـای کـې هـم لازم کـړه چې پوهیږې چې تا ته تاوان رسوي، ځکه؛ حقیقت کې درتـه ګټـه رسـوي. او دروغ په داسې ځای کې هم مه وایه چې دا فکر کوې چې ګټه راته رسوي، ځکـه دا درتـه ضرر رسوي.

عبدالقادر جیلاني رحمه الله فرمایي چې: ما خپل هر څه په رښتیاوو بناء کړي، او هغه ځکه چې: زه د طالبی لپاره له مکې څخه روان شوم او زړه مې و چـې بغـداد ته لاړ شم. مور مې څلوېښت دیناره راکړل او دا ټینګار یې راته وکړ چـې همېشـه بـه رښتیا وایې! کله چې همدان ته ورسېدو، غله راووتل او زمونږ قافله یې چور کـړه. یـو غل له ما سره تېرېده پوښتنه یې وکړه چې تا سره څه شـی دي؟ مـا ورتـه وویـل چـې څلوېښت دیناره! هغه دا فکر وکړ چې زه ټوکې کوم، رانه ولاړ. بـل یـې راغـی، ویـل یې: تا سره څه شی دي؟ ما ورته وویل: څلوېښت دیناره! هغه خپل مشر ته وروستلم. هغه ته مې هم صفا وویل چې: څلوېښت دیناره راسره دي. د غلو مشرـ رانـه پوښـتنه وکړه چې ولې دې رښتیا وویل؟؟ ما ورته وویل چې ما مې مور سره عهـد کـړی چـې دروغ نه وایم، او وېرېږم چې د مور عهد مې مات نکـړم. لـه دې سره د ډاکوانـو امیـر چغې کړي: ویل یې ته له دې وېرېږې چې د مور عهد مات کړې او زه له دې څخـه ونه ډار شم چې د الله تعالی عهد ماتوم؟؟ بیا یې ترلاس لاندې غلو ته امر وکـړ چـې له قافلې مو چې کوم شیان لوټلي بېرته یې ورکړئ! او دغلو مشر راتـه وویـل: زه سـتا په لاس توبه باسم!. کوم غله ملګري یې چې ول هغوی دې خپل مشر ته وویل چـې

بس ته چې زمونږ په غلا کې مشر وې نن مو په توبه کې هم مشر یې، نـو ټولـو توبـه وکړه.

همدا راز که مونږ ربنتیا ووایو، رب تعالی به هم د رښتیاوو معامله راسره وکـړي؛ شداد بن الهاد رضي الله عنه فرمایي چې: له کوچیانو څخه یو سړی رسول الله صلی الله علیه و سلم ته راغی، ایمان یې پرې راووړ او تابعداري یې پیل کړه، نو ویې ویـل زه له تا سره هجرت کوم. رسول الله صلی الله علیه و سـلم خپلـو ملګـرو تـه د ده پـه هکله سپارښتنه وکړه. کله چې د خیبر غزا واقع شوه نو رسول اللّـه صـلی اللّـه علیـه و سلم غنیمت ونیوه. هغه یې تقسیم کړ او د همدې اعرابي لپاره یې هم حصه بېله کړه، او د هغه ملګرو ته یې ورکړله. هغه اعرابي به شاته د صحابه کرامو مالونه څرول. کلـه چې راغی، ملګرو یې د غنیمت برخه ورکړله، ویې پوښتل: دا څـه شـی دي؟ هغـوی وویل: ستا برخه ده چې رسول الله صلی الله علیه و سلم درته جـلا کـړې ده. دا مـال یې راواخیست او رسول الله صلی الله علیه و سلم ته راغی، ویې ویل: یا رسـول اللّـه صلی الله علیه و سلم دا څه شی دي؟ هغه صلی الله علیه و سلم وویل: دا سـتا برخـه ده چې ما درته بېله کړې. اعرابي وویـل: مـا د دې لپـاره سـتا تابعـداري نـه ده کـړې، بلکې ما د دې لپاره ستا تابعداري کړې چې دلته ولګېږم (خپلې مـرۍ تـه یـې اشـاره وکړه) او مړ شم (شهید شم) او جنت ته داخل شم. نو رسول اللّـه صـلی اللّـه علیـه و سلم وفرمایل: که ته رښتیا وایې نو الله به دې ریښتونی کړي. بیا د قتال میدان ته کوز شو، (میدان کې شهید شو) نو رسول الله صلی الله علیه و سـلم تـه پخپلـه چپنـه کـې راوړل شو، نو کله چې رسول الله صلی الله علیه و سلم پرې لمـونځ وکـړ دا دعـا یـې وویله: اللّٰهمَّ هَذَا عَبْدُكَ خَرَجَ مُهَاجِرًا فِيْ سَبِيْلِكَ، قُتِـلَ شَـهِيْدًا، وَ أَنَـا عَلَيْـهِ شَـهِيْدٌ (النسائي) الهي! دا ستا بنده و، ستا پـه لاره کـې مهـاجر وتلـی و، او سـتا پـه لاره کـې شهید قتل شو، او زه پرې ګواه یم.

نو که مونږ هم ځانونه له رښتیاوو سره داسې ملګري کړو لکه روح او بدن... نـو الله تعالی به مو په هر شي کې داسې ریښتوني کړي لکه دا اعرابي صاحبي...

## دروغ ویل د منافقینو عادت دی

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا، وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا: إِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ، وَإِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَاعَاهَدَ غَدَرَ، وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ (۷۵). یعنې: څلور داسې صفات دي چې په چا کې ول هغه خالص منافق دی او چا کې یې چې یو صفت و نو هغه کې د منافقت یو صفت شته تر څو یې چې پرېږدي: کله چې امانت ورکړل شي خیانت کوي، کله چې خبرې کوي دروغ وایي، کله چې وعده وکړي غدر کوي، او کله چې جنګ وکړي کنځا کوي.

## دروغ ویل آخر سړی جهنم ته داخلوي

دا چې دروغ انسان جهنم ته داخلوي، لکه څرنګه چې لوړ حدیث کې تېر شول چې:... وَإِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِي إِلَى الْفُجُورِ، وَإِنَّ الْفُجُورَ يَهْدِي إِلَى النَّارِ، وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَكْذِبُ حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللهِ كَذَّابًا. (۷٦).. او یقینًا دروغ ویل فجور (بدوکارونو) ته لارښوونه کوي، او بد کارونه اور (جهنم) ته لارښوونه کوي، او یو سړی دروغ وایي تر څو پورې چې د الله په وړاندې (کذاب) ډېر دروغژن ولیکل شي.

او د کذاب لپاره خو دردناکه عذاب په قبر کې او شدید عقاب په جهنم کې دی.

همدا راز د سمره ابن جندب رضي الله عنه په اوږده روایت کې چې راځي: رسول الله صلی الله علیه و سلم به ډېر کله صحابه کرامو ته ویل: چا خوب لیدلی؟؟ راوي وایي چې د چا به خوښه شوه خوب به یې ورته تېر کړ. تر دې چې یو سهار یې خپله وویل: نن شپه دوه کسان راغلل او زه ورسره لاړم، هغوی به ویل: مخکې لاړ شه! تر دې چې: فَأَتَيْنَا عَلَى رَجُلٍ مُسْتَلْقٍ لِقَفَاهُ، وَإِذَا آخَرُ قَائِمٌ عَلَيْهِ بِكَلُّوبٍ مِنْ

---

(۷۵)(رواه مسلم في الإيمان باب بيان خصال المنافق رقم ۵۸)

(۷٦)(صحيح المسلم في البر والصلة والآداب باب قبح الكذب وحسن الصدق. رقم ۲٦۰۷)

حَدِيدٍ، وَإِذَا هُوَ يَأْتِي أَحَدَ شِقَّيْ وَجْهِهِ، فَيُشَرْشِرُ شِدْقَهُ إِلَى قَفَاهُ، وَمَنْخِرَهُ إِلَى قَفَاهُ، وَعَيْنَهُ إِلَى قَفَاهُ...: په يوه سړي تېرېدو، چې پړمخې پروت و، بل كس ورتـه ولاړ و او د وسپنې چنكگ ورسره و، د مخ يـوې خواتـه يـې راشي، خولـه يـې تـر څټـه ورتـه وشـكوي، او سـپېږمې يـې ورتـه تـر څټـه وشـكوي، او سترگې يـې تـر څټـه ورتـه وشكوي.... ثُمَّ يَتَحَوَّلُ إِلَى الْجَانِبِ الْآخَرِ، فَيَفْعَلُ بِهِ مِثْلَ مَا فَعَلَ بِالْجَانِبِ الْأَوَّلِ، فَمَا يَفْرُغُ مِنْ ذَلِكَ الْجَانِبِ حَتَّى يَصِحَّ ذَلِكَ الْجَانِبُ كَمَا كَانَ، ثُمَّ يَعُودُ عَلَيْهِ، فَيَفْعَلُ مِثْلَ مَا فَعَلَ الْمَرَّةَ الْأُولَى. يعني: بيا يې د مخ دا بلې خواتـه تـاو شي، هغسې كـار ورسره وكړي لكه له اولې خوا سره يې چې وكړ، لـه دې خـوا لا خـلاص نـه و، چـې دا اولـه خوا جوړه شوه، بيا به يې هماغه عمـل ورسره كـاوه چـې اول ځـل يـې وكـړ. (اوږده قصه ده خو چې كله رسول الله صلى الله عليه و سلم پوښتنه وكـړي او هغـوى يـې حالت بيانوي نو د دې سړي په هكله ووايـي) وَأَمَّا الرَّجُلُ الَّذِي أَتَيْتَ عَلَيْهِ يُشَرْشَرُ شِدْقُهُ إِلَى قَفَاهُ، وَمَنْخِرُهُ إِلَى قَفَاهُ، وَعَيْنُهُ إِلَى قَفَاهُ، فَإِنَّهُ الرَّجُلُ يَغْدُو مِنْ بَيْتِهِ، فَيَكْذِبُ الْكَذْبَةَ تَبْلُغُ الْآفَاقَ [٧٧].. يعني: او هغه سړى چې تا وليد پړمخې پـروت و، بـل كـس ورته ولاړ و او د وسپنې چنكگ ورسره و، د مخ يوې خواته يې راشي، خوله يـې تـر څټه ورته وشكوي، او سپېږمې يې ورته تر څټه وشكوي، او سترگې يې تر څټه ورته وشكوي؛ دا هغه سړى دى چې سهار له كوره راووځي او دروغ ووايـي چـې (افـاق) هرې خواته خپاره شي...

**دروغ كه د ټوكو په شكل وي بيا هم هلاكت دى او همدا يې وعيدونه دي**

دا عادت په مونږ كې ډېر دى چې كله دروغ وايو او راگير شو نو بيـا وايـو چـې ما خو ټوكې كولې؛ خبردار! دروغ په ټوكو كې هـم كبيـره گنـاه او مطلـق حـرام دي، ځكه: له بهز بن حكيم رضي الله عنه څخه روايت دى چې زمـا پـلار لـه خپـل پـلار څخه روايت كاوه چې ما له رسول الله صلى اللّـه عليـه و سـلم څخـه واورېـدل چـې

[٧٧](البخاري/ بَابُ تَعْبِيرِ الرُّؤْيَا بَعْدَ صَلاَةِ الصُّبْحِ/ رقم الحديث: ٧٠٤٧)

ویل یې: وَيْلٌ لِلَّذِي يُحَدِّثُ فَيَكْذِبُ لِيُضْحِكَ بِهِ الْقَوْمَ، وَيْلٌ لَهُ، وَيْلٌ لَهُ. (سنن ابي داود/ بَابٌ فِي التَّشْدِيدِ فِي الْكَذِبِ/ رقم الحديث: ٤٩٩٠) یعنې: هلاکت دې وي هغه کس ته چې خبرې کوي او خبرو کې دروغ وايي تر څو خلک وخندوي، هغه لره دې هلاکت وي، هغه لره دې هلاکت وي.

دروغ ویل رسول الله صلی الله علیه و سلم ته تر ټولو ډېر بد ایسېده. ام المؤمنین عائشه رضي الله عنها فرمايي:

كَانَ أَبْغَضُ الْخُلُقِ إِلَيْهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَذِبُ. [۷۸] ژباړه: رسول الله صلی الله علیه و سلم ته دروغ تر ټولو ډير مبغوض ول.

چې کوم عادت رسول الله صلی الله علیه و سلم دومره بد ګڼي نو آیا تاسو یې خوښوئ؟! که یې نه خوښوئ نو له دروغو مکمل لاس په سر شئ!

### په خوب کې دروغ ویل ستره ګناه ده

له واثله بن اسقع رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: إِنَّ مِنْ أَعْظَمِ الْفِرَى أَنْ يَدَّعِيَ الرَّجُلُ إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ، أَوْ يُرِيَ عَيْنَهُ مَا لَمْ تَرَ، أَوْ يَقُولَ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لَمْ يَقُلْ [۷۹]. ژباړه: له لويو ګناهونو څخه دا ده چې يو کس له خپل پلار پرته بل چا ته خپل نسبت وکړي، او دا چې سترګې يې هغه څه ويني چې نه يې وي ليدلی (د دروغو خوب بيان کړي) او يا په رسول الله صلی الله علیه و سلم ته منسوب هغه څه ووايي چې نه يې وي ويلي (يعني د درواغو حديث جوړ کړي) هېڅکله بايد د دروغو خوب جوړ نکړل شي.

### له ماشومانو سره دروغ ویل هم دروغ دي

ماشومانو سره دروغ ویل خو بیخي راته داسې نه ښکاري چې دا به هم ګناه وي، خو: عبدالله بن عامر رضي الله عنه فرمايي چې مور مې يوه ورځ وغوښتم او

[۷۸]( شعب الإيمان (٦/ ٤٥٩/مکتبة الرشد طبع: هندي)

[۷۹](البخاري/ بَابُ نِسْبَةِ اليَمَنِ إِلَى إِسْمَاعِيلَ/ رقم الحديث: ٣٥٠٩)

رسول الله صلی الله علیه و سلم زمونږ کور کې ناست و، نـو مـور مـې وویـل: راشـه! چې یو شی درکړم. نو رسـول اللّـه صـلی اللّـه علیـه و سـلم ورتـه وفرمایـل: څـه شـی ورکوې؟؟ هغې وویل: خرما مې ورکوله. نو رسول اللّه صـلی اللّـه علیـه و سـلم ورتـه وفرمایل: أَمَا إِنَّكِ لَوْ لَمْ تُعْطِيهِ شَيْئًا كُتِبَتْ عَلَيْكِ كَذْبَةٌ [٨٠]. که تا څه شی نه ورکـولی نو په تا به دا هم دروغ لیکل شوی و. دا حدیث باید ځان تـه د لارې مشـال کـړو او هېڅکله ماشومانو سره هم دروغ ونه وایو.

## د دروغ ویلو لاملونه (هغه چې باید لرې کړل شي)

انسان چې کله دروغ وایي نو خامخا یو لامل وي، علماء کرامو یې څو لاملونـه بیان کړي چې پکار ده هر مؤمن او په ځانګړې توګـه مجاهـد ترېنـه پـه بشـپړه توګـه ځان وساتي.

له خپلې هرې خطا څخه ځان پاکول او عذرونه ویل تر څو یې د سزا له عواقبو ځان په دروغو خلاص کړي. دا هغه لامل دی چې ډېری دروغ ویونکي پکې راګیـر دي، ځکه چې له انسان نه کومه غلطي وشي نو دا نه خوښوي چې خلـک د غلطـۍ نسبت ورته وکړي، نو د همدې غلطۍ له تور څخه د خلاصون پـه موخـه سـل او زر دروغ سره یو ځای کړي.

بې دلیله په دروغو عادت کېدل. ځینې خلکو ته دروغ د عادت له مخې خوند ورکوي، او دا عادت هغه مهال ختمېدلی شي چې په دروغو ځان تـه یـوه لویـه سـزا وټاکل شي.

خلکو ته چل ورکول او د هغوی نیمګړتیاوې شمېرل او ثابتول. د ځینـو خلکـو عادت وي چې بل چا ته چل ورکولو څخه خوشـالي احساسـوي او دا ورتـه افتخـار ښکاري. دا عادت باید هر مؤمن له ځان څخه لرې کړي.

د دنیاوي لږ مال لپاره دروغ ویل او د الله په حضور کې یې ځواب

---

[٨٠](ابوداود/ بَابٌ فِي التَّشْدِيدِ فِي الْكَذِبِ/ رقم الحديث: ۴۹۹۱)

له لږ شي څخه ویره، په داسې حال کې چې د رب العالمین له نا فرمانۍ څخه نه ویریږي؛ د دنیا له وړوکي ډار څخه د ځان خلاصولو لپاره به ګڼ درواغ یو ځای کړي.

بې پروا کېدل، بې ځایه ټوکې کول او دروغو ته په کمه سترګه کتل پکار نه دي، ځانونه لا ابالي کول پکار نه دي، د رب العالمین له نا فرمانۍ دومره بې پروایي باید ونه شي.

په بل چا ملامتي اړول او د خلکو سپکاوی، دا ډېر سپک عادت دی چې څوک د تل لپاره دا غواړي چې بل کس ملامت کړي، او د هغه د ملامت ثابتولو لپاره ګڼ دروغ یو ځای کوي.

فخر او شهرت غوښتنه، د دنیا ټول افتخار او ټول شهرت به څومره وي؟؟ ایادا غواړئ چې الله تعالی هغسې عذاب دربانديې مقرر کړي چې د وسپنې په چنګک مو خوله، پوزه او سترګې شلیږي.

د هرې خبرې انتقام غوښتنه، دا عادت باید له ځان لرې شي چې که څوک یوه خبره وکړي نو خامخا به یې ځواب په دریو خبرو ورکوو... هو! دا عادت باید له ځان څخه لرې کړو.

که دا عادتونه له ځان څخه لرې کړو نو الله تعالی به مو له دروغو څخه وساتي.

### د دروغو جائز حالتونه

د ام کلثوم رضي الله عنها له روایت سره سم چې امام مسلم روایت کړی: دروغ یواځې په دریو حالاتو کې جائز دي:

له دښمن سره د جنګ پر مهال، د خلکو په منځ کې د اصلاح لپاره او د خاوند دروغ خپلې ښځې ته.

د جنگ پر مهال دروغ جائز دي، خو دا رخصت بايد دومره عام نشي ـ لکه اوس چې څومره عام شوی. د جنگ پر مهال هغه دروغ ويل جائز دي چې اثر يې ښه وي، د بېلگې په ډول: د دښمن قوه راځي، او مجاهدين دا وايي چې مونږ په لار کې لس مينونه ايښي. په دې حالت کې يې دا اثر شته چې په دښمن به رعب غالب شي، خو که داسې وي چې مين مو له ټانگ لرې والوځي او مونږ وايو چې ټانگ مو والوزاوه نو دا هېڅکله جائز نه دي، مجاهدين ورونه بايد دې خبرې ته متوجه وي چې له دې رخصت څخه دومره بې ځايه استفاده ونشي.

* * *

# له غیبت څخه ځان ساتل

د بل مسلمان غیبت کول هغه لویه گناه ده چې د رسول اللّه صلی اللّه علیه وسلم د وینا سره سم تر زنا هم بده گڼل شوې ده. د مسلمان لپاره د مسلمان غیبت کول ستره گناه ده خو که مجاهد د بل مجاهد غیبت وکړي نو بیا؟؟

معلومه ده چې گناه به یې تر عام حالت هم ستره وي ځکه؛ څومره چې مقربیت ډېر وي هومره بیا خفگان هم ورسره ډېر وي، دا چې مجاهد د قادر رب د مقربیت دعوه کوي نو باید چې له خفگان څخه یې ډېر ځان لرې کړي.

اللّه تبارک و تعالی فرمایي: يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱجۡتَنِبُوا كَثِيرٗا مِّنَ ٱلظَّنِّ إِنَّ بَعۡضَ ٱلظَّنِّ إِثۡمٞۖ وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا يَغۡتَب بَّعۡضُكُم بَعۡضًاۚ أَيُحِبُّ أَحَدُكُمۡ أَن يَأۡكُلَ لَحۡمَ أَخِيهِ مَيۡتٗا فَكَرِهۡتُمُوهُۚ وَٱتَّقُوا ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ تَوَّابٞ رَّحِيمٞ. (الحجرات/۱۲)

ژباړه: «ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) ځان وساتئ تاسي ډیر له بدگومانیو او تهمتونو نه (په خلکو باندې) بېشکه ځینې بدگومانونه او تهمتونه گناه ده او مه لټوئ تاسي پټ عیبونه د مسلمانانو او نه دې کوي غیبت ځینې ستاسي د ځینو نورو، ایا خو ښوي یو له تاسي څخه دا چې وخوري غوښې د ورو خپل، حال داچې مړ وي پس بد گڼئ تاسي هغه، نو هم دارنگه بد وگڼئ د مسلمانان ورور غیبت او عیب لټول، وویرېږئ تاسي له اللّه تعالی څخه بشکه اللّه ښه توله قبلوونکی ډیر رحم والا دی».

د اللّه تعالی له نهي سره سره رسول اللّه صلی اللّه علیه وسلم هم د غیبت له کولو څخه منع کړې ده، لکه د ابوهریره رضي اللّه عنه په روایت کې چې راځي: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: هَلْ تَدْرُونَ مَاالْغِيبَةُ؟ قَالُوا: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ:

ذِكْرُكَ أَخَاكَ بِمَا يَكْرَهُ. قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ كَانَ فِي أَخِي مَا أَقُولُ لَهُ؟ قَالَ: إِنْ كَانَ فِيهِ مَا تَقُولُ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ مَا تَقُولُ فَقَدْبَهَتَّهُ. (۸۱)

ژباړه: له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايل: آيا تاسو پوهېږئ چې غيبت څه شی دی؟ (صحابه کرامو) وويل: الله او رسول الله ښه پوهېږي. هغه (صلی الله عليه و سلم) وفرمايل: ستا د ورور په هکله ستا هغه خبره چې هغه يې نه خوښوي. چا وويل: هغه څه چې زه يې د خپل ورور په هکله وايم که هغه رښتيا پکې وي نو بيا؟ هغه (صلی الله عليه و سلم) وفرمايل: که دا عيب پکې و او تا وويل نو يقينا غيبت دې وکړ او که پکې نه و او تا وويل نو يقينا بهتان دې پرې وتاړه.

همدا راز رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: اَلْغِيْبَةُ اَشَدُّ مِنَ الزِّنَا (البيهقي) يعنې: غيبت له زنا څخه هم سخت دی. له پورته آيت او حديث څخه په ډاګه معلوميږي چې غيبت له کبيره ګناهونو څخه يوه لويه ګناه ده چې بايد هر مسلمان او په تېره بيا مجاهد خو بايد ځان ځنې وساتي.

کله چې د يو مسلمان په يو عادت او يا يو بد رنګه عمل باندې مونږ باوري يو، ښه پرې خبر يو، خو هغه يې يادول ښه نه ګڼي او مونږ يې يادوو نو دا غيبت دی او کبيره ګناه ده، نو کله چې د يقين په حالت کې هم ګناه وي نو چې بيخي پرې باوري نه يو او صرف يو ګمان وي نو بيا به يې ګناه څومره سخته وي؟

د همدې ډول غيبت (يعنې چې باوري او ښه پرې خبر هم نه يو، هسې يوه اوازه وي، خو بيا هم په يوه چا پسې هماغه ډول خبرې او اوازې تعقيبوو او يادوو چې هغه يې ښه نه ګڼي او پرې خفه کيږي).

د الله تعالی د وينا سره سم بايد په هغو شيانو پسې په هېڅ توګه ونه ګرځو چې علم يې راته پوره نه وي. همدا راز که چېرته يو بل څوک د چا غيبت کوي نو بايد

(۸۱)(مسلم/ بَابُ تَحْرِيمِ الْغِيبَةِ/ رقم الحديث: ۲۵۸۹)

چې منع یې کړو او په هغه نعمت کې ځان راولـو چـې ابـودرداء رضي اللّه عنـه لـه رسول اللّه صلی اللّه علیه وسلم څخه روایت کـوي چـې ویـې فرمایـل: مَـنْ رَدَّ عَـنْ عِرْضِ أَخِيهِ؛ رَدَّ اللهُ عَنْ وَجْهِهِ النَّارَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. [۸۲] یعنې: چا چې د خپـل ورور لـه عزت څخه دفاع وکړه (څوک یې د هغه په غیاب کې د هغه غیبت ته پرېنښـودل) نـو اللّه تعالی به د قیامت په ورځ د هغه له مخ څخه اور رد کړي.

د رسول اللّه صلی اللّه علیه وسلم په وینا باندې د عمل کولو لپاره باید هېڅکله کوم څوک د چا غیبت ته پرېنږدو، په دې معنا سره که کوم کس زمونږ تر مخې د یو چا هغه خبرې کوي چې اصلي کس یې نه خوښوي چې دا خبرې افشاء شي نو باید چې منع یې کړو او په دې منع کولو سره د قیامت په ورځ له ځان څخـه د جهـنم اور منع کړو. باید ووایم که چېرته هغه خبره ټولو ته معلومه هم وي نو باید چې بیا هـم د هغه غیبت ته څوک پرېنښودل شي. البته د غیبت د جواز یو څو هغه حالتونه مستثنی دي چې علماوو بیان کړي دي:

هغه حالات چې علماء کرامو پکې غیبت ته جائز ویلي دي، شپږ حالتونه دي:

**لومړی: د ظلم بیان**

د مظلوم لپاره جائز دي چې قاضي او یا هم کوم بل د واک څښتن ته پر مظلوم باندې د شوي ظلم بیان وکړي چې فلانکي له ما سره داسې وکـړل او دا د هغـه ظلـم کوونکي کس غیبت نه دی او دا جائز دي.

**دوهم: د منکر په منع کولو کومک غوښتل**

کله چې یو څوک ووینې چې په گناه کې لګیا دی، او یـا هـم پـه یـوه ټولنـه او گروپ کې یو عمومي مشکل دی او د هغه د منع کولو لپاره یې چا ته بیان کـوې تـر څو چې هغه یې منع کړي، که په داسې حالت کې د بیانونکي نیت د منکر ازالـه وي نو دا په غیبت کې نه راځي او اللّه تعالی به ان شاء اللّه اجر پرې ورکوي.

---

[۸۲](الترمذي/ بَابُ مَا جَاءَ فِي الذَّبِّ عَنْ عِرْضِ المُسْلِمِ/ رقم الحديث: ۱۹۳۱)

**دریم: د استفتاء په حالت کې**

هغه دریم حالت چې انسان ته پکې غیبت کول جائز دي د استفتاء حالت دی، په دې معنا سره چې یو کس د یوې مسئلې په هکله له مفتي څخه شرعي وضاحت غواړي او پدې کې دا ووايي چې فلانکي او یا زما ورور او... په ما دغسې ظلم کړی نو د دې شرعي جواز څنګه دی؟

علماء کرامو د دې لپاره هم د ضرورت له وجې اجازه ورکړې خو پدې کې هم احتیاط دا دی چې داسې پوښتنه وشي چې د هغه کس شرعي حکم څه شی دی چې د خپل ورور په حق کې دغسې (پدې کې پوره وضاحت ولیکي) وکړي.

لکه هنده رضي الله عنها چې د ابوسفیان رضي الله عنه د نفقې په اړه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه کوي نو په دې ځای کې ورته ابوسفیان رضي الله عنه په نامه یادوي.

**څلورم: نور مسلمانان یې له شر څخه خبرول او هغوی ته د خیرخواهۍ له امله وضاحت کول.**

کله چې د یو کس مشکل داسې وي چې که خلک ترې خبر نکړل شي نو مشکل عام جوړیږي او ضرر یې ډیریږي نو په دې حالت کې د هغه بدۍ بیانول مشکل نه لري. خو دا حالت پخپله ډیر صورتونه لري:

۱- د حدیثو د راویانو جرح کول (چې دا د امت په اتفاق سره جائز څه چې واجب دي)

۲- د مشورې غوښتونکي ته صفا خبره کول: داسې چې یو کس له تا سره مشوره کوي چې فلانکۍ کورنۍ سره د نکاح اراده لرم ته څنګه مشوره راته لرې؟ نو پداسې حالت کې که په هغې کورنۍ کې کوم مشکل وي د هغه مشکل بیان کول په حرام غیبت کې نه راځي او باید په وضاحت سره وویل شي. لکه څرنګه چې د فاطمې بنت قیس رضي الله عنها روایت دی چې: أتيت النبيَّ – صلى الله عليه وسلم

- فقلتُ: إنَّ أَبَا الجَهْم وَمُعَاوِيَةَ خَطَبَانِي؟ فَقَالَ رسُولُ الله - صلى الله عليه وسلم: أَمَّـا مُعَاوِيَةُ فَصُعْلُوكٌ لاَ مَالَ لَهُ وأَمَّا أَبُو الجَهْمِ، فَلاَ يَضَـعُ العَصَـا عَـنْ عَاتِقِـهِ)[۸۳] ژباړه: فاطمه بنت قيس رضي الله عنها فرمايي: ما رسول الله صلى الله عليه و سلم ته وويـل چې: ابوالجهم رضي الله عنه او معاويه رضي الله عنه ما ته د نکاح خطبه رالېږلې، نـو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: معاويه خو غريب دی هېڅ مـال نـه لـري او ابوالجهم خپله لکړه له اوږې نه کوزوي. (يو مطلب يې دا دی چـې ښــــځې ډېـرې وهي او بل يې دا دی چې ډېر سفرونه کوي)

په دې ځای کې رسول الله صلى الله عليه وسلم د مشـورې غوښـتونکې بي بي ته صفا هغه حال وايي چې حقيقت و او دا هېڅکله غيبت نه دی.

او يا هم د کوم کس سره د جهادي صـف ملگرتيـا کـول غـواړي او لـه تـا سره مشوره کوي نو تا ته مناسبه ده چې صفا خبره ورته وکړې کـه پـه نومـوړي کـې کـوم مشکل وي نو هغه بيان کول غيبت نه دی او بايد پټ نکړل شي. خو بايد پـدې کـې هم نيت د خيرخواهۍ وي نه د هغه کس بد بيانول.

### ۳- د علماء سوء او بدو خلکو بيان کول

کله چې يو څوک ووينې چې مخلص دی او علم نه لري او هغه داسې عالم ته ورځي چې هغه په بدعتونو کې مبتلاء وي او يا هم د طاغوت بنـدگي کـوي (کفـري نظام مشرانو ته ورځي) نو د هغه شاگرد او هغه عام مسلمان ته چې د اخـلاص او بـې علمۍ له امله ورځي هغوی ته د دې عالم بد بيانول مشـکل نـه لـري. او يـا هـم هغـه خلک چې له بدو خلکو سره روابط لري او ته غـواړې چـې دا بـې خـبره ورتلـونکي ترې راوگرځوې.

[۸۳] (صحيح المسلم: بَابُ الْمُطَلَّقَةِ ثَلاَثًا لاَ نَفَقَةَ لَهَا/ رقم الحديث: ۱۴۸۰

لکه د عائشې رضي الله عنه په روایت کې چې راځي: یو کس رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د راتللو اجازه وغوښتله، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ائْذَنُوا لَهُ، بِئسَ أَخُو العَشِيرَة[۸٤]. اجازه ورکړئ! د قبیلې ډیر بد ورور دی.

همدا راز له عائشې رضي الله عنها څخه په بل روایت کې راځي چې: قَالَ رسولُ الله – صلى الله عليه وسلم مَا أَظُنُّ فُلاناً وفُلاناً يَعْرِفانِ مِنْ دِينِنَا شَيْئاً. (البخاري) یعني: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په فلانکي او فلانکي خو زه دا ګمان لرم چې زمونږ له دین څخه په هیڅ شي هم نه پوهیږي. (د حدیث په راویانو کې لیث بن سعد فرمایي: دا دواړه له منافقانو څخه ول)

له پورته احادیثو څخه په ډاګه څرګندیږي چې د هغو خلکو چې مشکل یې عامېدلی شي او ټولنه ترې متضرره کیږي، د هغوی د بدو عادتونو او عملونو بیان کول غیبت نه دی.

## ۴- د مسئول یا بل ملګري حال عمومي امیر ته ورکول

کله چې د اسلامي امارت لاندې مسئول کومه سستي وکړي او یا هم د خپل کار وړ نه وي نو د افرادو لپاره دا جائز دي چې عمومي امیر ته یې حال ووایي. خو په دې ځای کې یوه خبره مهمه ده چې د مسئول د سستی بیان عمومي امیر ته جائز دی، خو که د افرادو منځ کې دا خبرې کیږي او هیڅ د نصیحت خبره ورته نه کول کیږي، نو دا جائز نه ده او په حرام غیبت کې راځي، همدا راز که د مسئول مشکلات له عامو خلکو سره یادیږي او یا هم داسې چا سره یادیږي چې نتیجه پرې نه مرتبیږي نو دا هم جائز نه ده خو که شرعي مشکل وي او عمومي امیر ته ویل کېږي نو بیا جائز دی.

امام بخاري رحمه الله د زید ابن ارقم رضي الله عنه هغه روایت تفصیلا رانقل کړی چې د بنی المصطلق او المریسیع په غزا کې عبدالله بن ابی بن سلول د منافقینو

---

[۸٤](صحیح المسلم في البر والآداب والصلة باب مداراة من یتقی فحشه رقم ۲۵۹۱)

رئیس د ﴿لَيُخۡرِجَنَّ ٱلۡأَعَزُّ مِنۡهَا ٱلۡأَذَلَّ﴾. (المنافقون/۸) ترجمه: «وایـي منافقـان کـه چیـري بیرته وګرځو موږ طرف د مدینې ته نو خامخـا بـه وبـاسي هرومـرو ډیـر عـزتمن (کـافر خلک له دغې مدینې نه) ډیر خوار کمزور خلک (لره له مؤمنانو)». خبره وکړه نو هغه رضي الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته حال راووړ، هغه صلی الله علیـه وسـلم چې کله د منافقینو رئیس ته دا خبره وکړه نو هغه قسمونه کول او ځان یې بـري ښـودلو تر دې چې الله تعالی د زید بن ارقم رضي الله عنه تصدیق وکړ او د عبدالله بن ابی بـن سلول دروغ یې څرګند کړل. یاده ېښنه که لږ په غـور وکتـل شي نـو ترېنـه څرګنـدیږي چې د افرادو او مسؤلینو هغه غلطۍ چې ولسي او یا جهادي مشکلات رابرسـېره کـوي، مافوق امیر ته ویل غیبت نه، بلکې چې د اصلاح په نیت وي نـو اللّـه تعـالی پـرې اجـر هم ورکوي.

### ۵- په ښکاره توګه د ګناه کوونکي حال بیانول

هغه کس چې په ښکاره توګه ګناه کوي او بل کـس ورسره د بـې علمـۍ لـه املـه روابط ساتي نو هغه ته یې بیان کول غیبت نه دی، پداسې شکل سره چـې د هغـه ګنـاه ورته بیان کړي چې هغه یې په ښکاره توګه کوي. لکه یو څـوک چـې پـه خلکـو ظلـم کوي او یا هم په ښکاره توګه د خلکو مالونه په زور غصب کوي نـو د هغـه بیـان کـول غیبت نه دی.

### پنځم: د چا معرفت او پیژندګلوي چې په کوم صفت وي

کله چې یو څوک په ړوند، کوڼ، ګوډ، ټیټ، تور، سور، او یـا کـوم بـل صـفت سره مشهور وي او بېله دې (صفت) څخه یې پیژندل ګران وي، نو د هغه له نـوم سره یې دا صفت یادول ګناه نه لري. خو که نوموړي له دې صفت څخه بده وړله نو باید چې ځان ترې وساتل شي.

شیخ سعدي رحمه الله یوه شپه له خپل پـلار سره د تهجـدو لمانځـه تـه پورتـه شو، کله یې چې لمونځ وکړ، ویې کتل چې یو څه خلـک ویـده دي. شـیخ سـعدي رحمه اللّه خپل پلار ته وویل: چې دا خلک خو ویده دي. پلار یـې ورتـه ویـل: تـر

داسې تهجدو چې وروسته د مسلمان غیبت کوې ښه درته دا وه چې ته هم ویده وې، له گناه څخه خو به خوندي وې!

زما گرانه مخاطبه! که ته مجاهد يې! که ته عالم يې! که ته طالب يې! او که زما د مجاهد ولس هر فرد يې! خو چې کله د بل عام مسلمان او په تېره بيا د مجاهد غيبت کوې؛ داسې ده لکه د هغه د مړه جسد څخه چې غوښې خورې! نو د دې لپاره چې خپل اجر دې نه وي کم او برباد کړی هېڅکله د بل چا غیبت مکوه او بیا د مجاهد له غيبت څخه خو داسې لرې وتښته لکه انسان چې له اور څخه تښتي.

* * *

## د مسلمان عیبونه پټول

کله چې په کوم مسلمان کې کوم عیب ولیدل شي نو هغه باید پټ کړل شي او افشاء نشي، ځکه: إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ وَاللهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ (النور/۱۹)

ژباړه: «بېشکه هغه کسان چې خوښه وي دغه (خبره) چې خوره شي فاحشه بدنامي په حق د هغو کسانو کې چې ایمان یې راوړی دی شته دغو (کسانو) ته عذاب دردناک په دنیا کې (په حد د قذف او په بدنامۍ سره) او په اخرت کې (په اور د دوزخ سره) او الله ښه عالم دی او تاسي نه پوهیږئ (پر ضرر د هغې خورې کړې فحشاء)».

په مسلمان باندې پرده اچول د قیامت په ورځ د پردې لامل دی.

له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې هغه له نبي کریم صلی الله علیه و سلم څخه روایت کوي، چې ویې فرمایل: لَا يَسْتُرُ عَبْدٌ عَبْدًا فِي الدُّنْيَا، إِلَّا سَتَرَهُ الله يَوْمَ الْقِيَامَةِ. [۸۵] یعنې: پرده نه اچوي هېڅ کوم بنده په بل بنده باندې مګر الله جل جلاله به د قیامت په ورځ په هغه بنده پرده واچوي.

څوک چې په مؤمنانو پرده نه اچوي؛ الله تعالی به یې وشرموي، که څه هم په خپل کور کې وي، له ابوبرزه اسلمي رضي الله عنه څخه روایت دی چې فرمایي: رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: يَا مَعْشَرَ مَنْ آمَنَ بِلِسَانِهِ وَلَمْ يَدْخُلِ الْإِيمَانُ قَلْبَهُ، لَا تَغْتَابُواالْمُسْلِمِينَ، وَلَا تَتَّبِعُوا عَوْرَاتِهِمْ؛ فَإِنَّهُ مَنِ اتَّبَعَ عَوْرَاتِهِمْ يَتَّبِعُ

[۸۵](مسلم/ بَابُ بِشَارَةِ مَنْ سَتَرَ اللهُ تَعَالَى عَيْبَهُ فِي الدُّنْيَا، بِأَنْ يَسْتُرَ عَلَيْهِ فِي الْآخِرَةِ/ رقم الحدیث: ۲۵۹۰)

اللّٰه عَوْرَتَهُ، وَمَنْ يَتَّبِعِ اللّٰه عَوْرَتَهُ يَفْضَحْهُ فِي بَيْتِهِ. (۸٦)ژباړه: اې هغو خلکو چې په ژبه یې ایمان راوړی خو زړه ته یې ایمان نه دی کوز شوی! د مسلمانانو غیبت مه کوئ! او د هغوی په پټو عیبونو مه پسي کیږئ! ځکه؛ څوک چې د مسلمانانو پټ عیبونه پلټي، نو اللّٰه تعالی به د هغه په پټو عیبونو پسې شي، او چې اللّٰه تعالی د چا په عیبونو پسې شي نو هغه به وشرموي (که څه هم) پخپل کور کې وي.

**تر سزا کېدلو وروسته له بنېرا څخه منع**

کله نا کله د یو چا یو عیب مشهور شوی وي، نو که چا ته ووایې چې ولې ددغه مسلمان ورور په هکله داسې وایې؟ نو هغه وايي چې دا خبره خو ټول خلک کوي، نو باید ووایو چې:

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰه عَنْهُ، أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ، قَالَ: اضْرِبُوهُ. قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ رضي اللّٰه عنه: فَمِنَّا الضَّارِبُ بِيَدِهِ، وَالضَّارِبُ بِنَعْلِهِ، وَالضَّارِبُ بِثَوْبِهِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: أَخْزَاكَ اللّٰه. قَالَ: لَا تَقُولُوا هَكَذَا، لَا تُعِينُوا عَلَيْهِ الشَّيْطَانَ. (۸۷)

ژباړه: له ابوهریره رضي اللّٰه عنه څخه روایت دی، چې: نبي کریم صلی اللّٰه علیه و سلم ته یو کس راوستل شو چې شراب یې څښلي ول. رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه و سلم وفرمایل: ویې وهئ! ابوهریره رضي اللّٰه عنه فرمایي: په مونږ کې چا په لاس واهه، چا په څپلیو واهه، چا په کالیو واهه. کله چې وګرځېد، ځینو خلکو وویل: اللّٰه دې وشرموه! رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه و سلم وفرمایل: داسې مه وایئ! په ده باندې له شیطان سره کومک مکوئ!.

نو که مونږ یو چا ته د هغه عیب ورياد کړو، او یا یې مشهور وو نو دا مو شیطان سره کومک وکړ، د دې حدیث سره سم باید دا عادت له ځان څخه لرې کړو.

---

(۸٦)(سنن ابي داود/ بَابٌ فِي الْغِيبَةِ/ رقم الحديث: ۴۸۸۰)

(۸۷)(البخاري/ بَابُ الضَّرْبِ بِالْجَرِيدِ وَالنِّعَالِ/ رقم الحديث: ٦٧٧٧)

## پخپل ځان پرده اچول

له زید بن اسلم رضي الله عنه څخه روایت دی چې: أَنَّ رَجُلًا اعْتَرَفَ عَلَى نَفْسِهِ بِالزِّنَى عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَدَعَا لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَوْطٍ، فَأُتِيَ بِسَوْطٍ مَكْسُورٍ، فَقَالَ: فَوْقَ هَذَا. فَأُتِيَ بِسَوْطٍ جَدِيدٍ، لَمْ تُقْطَعْ ثَمَرَتُهُ، فَقَالَ: دُونَ هَذَا. فَأُتِيَ بِسَوْطٍ قَدْ رُكِبَ بِهِ وَلَانَ، فَأَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجُلِدَ، ثُمَّ قَالَ: أَيُّهَا النَّاسُ، قَدْ آنَ لَكُمْ أَنْ تَنْتَهُوا عَنْ حُدُودِ اللهِ، مَنْ أَصَابَ مِنْ هَذِهِ الْقَاذُورَاتِ شَيْئًا، فَلْيَسْتَتِرْ بِسِتْرِ اللهِ، فَإِنَّهُ مَنْ يُبْدِي لَنَا صَفْحَتَهُ؛ نُقِمْ عَلَيْهِ كِتَابَ اللهِ [۸۸] ژباړه: د رسول الله صلی الله علیه و سلم په وخت کې یو کس د زنا کولو اعتراف وکړ، نو رسول الله صلی الله علیه و سلم د هغه پخاطر سوط (د وهلو دره) راوغوښتله، نو یوه ماته (ډېره نرمه شوې) دره راوړل شوه، رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: تر دې پورته! نو یوه نوې دره راوړل شوه چې لا یې ثمره (کلک څنګونه) نه ول قطع شوي، نو ویې فرمایل: تر دې کمه! نو یوه بله دره راوړل شوه چې کلک څنګونه یې مات شوي ول او لږ نرمه وه، نو رسول الله صلی الله علیه و سلم امر وکړ او هغه کس په درو ووهل شو. بیا یې وفرمایل: اې خلکو! یقینًا وخت درته رارسېدل چې د الله تعالی له حدودو منع شئ! څوک چې په دغو ناپاکیو کې په کوم شي کې راګیر شو، نو د الله تعالی په ستر سره دې پرده وکړي، یقینًا چا چې مونږ ته خپله پاڼه پرانیستله؛ مونږ هم پرې د الله کتاب تطبیقوو.

همدا راز له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې فرمایي: ما له رسول الله صلی الله علیه و سلم څخه واورېدل چې فرمایل یې: كُلُّ أُمَّتِي مُعَافَاةٌ إِلَّا الْمُجَاهِرِينَ، وَإِنَّ مِنَ الْإِجْهَارِ أَنْ يَعْمَلَ الْعَبْدُ بِاللَّيْلِ عَمَلًا، ثُمَّ يُصْبِحُ قَدْ سَتَرَهُ رَبُّهُ فَيَقُولُ: يَا فُلَانُ، قَدْ عَمِلْتُ الْبَارِحَةَ كَذَا وَكَذَا، وَقَدْ بَاتَ يَسْتُرُهُ رَبُّهُ، فَيَبِيتُ يَسْتُرُهُ رَبُّهُ،

---

[۸۸]. ( موطأ مالك ت عبد الباقي (۲/ ۸۲۵) داراحیاء بیروت )

وَيُصْبِحُ يَكْشِفُ سِتْرَ الله عَنْهُ. [٨٩] ژباړه: زما ټول امت به ښښل کيږي پرته له مجاهرينو (هغه کسان چې په بربنډه توګه ګناه کوي) څخه، او يقينًا له اجهار (ښکاره ګناه کولو) څخه دا هم ده چې يو بنده د شپې يو کار وکړي، بيا داسې سهار پرې راشي چې الله تعالى پرې پرده اچولې وي، خو بيا سهار پخپله وايي چې: اې فلانکيه! ما د شپې داسې کار وکړ. الله تعالى د شپې پرې پرده واچوله، هغه هم د الله په پرده کې شپه تېره کړه، خو چې سهار شو پخپله يې د الله تعالى پرده څيرې کړه.

* * *

---

[٨٩] (صحيح المسلم/ في الزهد والرقائق باب النهي عن هتك الإنسان ستر نفسه رقم ٢٩٩٠)

# د ژبې ساتنه

کله چې انسان په ډېرو شخصي کارونو کې مصروف وي نو بيا نور خلک ترې هېر وي، خو ځيني خلک د وزګارتيا له امله او ځيني بيا د عـادت لـه مخـې پرلپسـې غږيږي. کله د چا غيبت کوي، کله بيا په بل مسلمان تهمت تړي، کله هـم د درواغـو قصې بيانوي، او کله بيا پخپله ژبه د خلکو سپکاوی کوي.

دا هغه بد صفات دي چې بايد هـر مـؤمن ورځنـې ځـان وسـاتي، خـو د اللّـه د لارې مجاهدين چې کله په يوه مرکز کې د اللّٰه د لقاء پـه تمـه پراتـه وي نـو بايـد لـه داسې صفاتو داسې لرې وتښتي لکه يو څوک چې له اوره تښتي. الحمدللـه! پـه دې پوره ډاډه يم چې په څومره کامله اندازه چې د مجاهدينو چاپېريال په شريعـت برابـر دی په بل هېڅ ځای کې دومره په شريعت برابر ماحول نشته. خو؛ بيا هـم مجاهـدين ملګري بايد د ژبې حفاظت ته ډېره زياته پاملرنـه وکـړي، ځکـه؛ لـه سـهل بـن سـعد رضي اللّٰه عنه نه روايت دی چې له رسول اللّٰه صلى اللّـه عليـه و سـلم څخـه روايـت کوي، چې ويې فرمايل: مَنْ يَضْمَنْ لِي مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ، وَمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ أَضْـمَنْ لَهُ الْجَنَّـةَ.[90] يعنې: چا چې ما ته د خپلو دوو ژامـو د مـنځ (يعنـې ژبـې) او د دوو پښـو د مـنځ (شرمګاه) ضمانت راکړ زه به د جنت ضمانت ورکړم.

نو آيا د رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه و سلم په ژبه د جنت ضمانت غواړئ؟؟؟ کـه يې غواړئ نو بايد د شرمګاه د حفاظت سره سم د ژبې حفاظت هم وکړو!

مجاهدين ملګري تر هر چا ډېر بايد د ژبې حفاظت ته متوجه وي، ځکـه چـې دا يو ايماني صفت دی او د ايمان کمال بايد تر نورو ډېر په مجاهـدينو کـې وي، لـه ابوهريره رضي اللّٰه عنه څخه روايـت دی چـې رسـول اللّـه صـلى اللّـه عليـه و سـلم

---

[90] (البخاري/ بَابُ حِفْظِ اللِّسَانِ/ رقم الحديث: ٦٤٧٤)

وفرمایل: مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِالله وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِالله وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِالله وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ [۹۱]. ژباړه: څوک چې په الله او د آخرت په ورځ ایمان لري نو خپل گاونډي ته دې تکلیف نه رسوي، او څوک چې په الله او د آخرت په ورځ ایمان لري نو د خپل مېلمه دې اکرام وکړي او څوک چې په الله او د آخرت په ورځ ایمان لري نو د خیر خبره دې وکړي او یا دې غلی شي.

په هرې خبرې باید له اول څخه فکر وشي، چې ایا دا خبره خو به دروغ نه وي؟ دا خو به د چا غیبت نه وي؟ په دې کې خو به د چا اهانت نه راځي؟ په دې کې خو به کوم راز نه افشاء کیږي؟ پدې کې خو به بل څوک نه خفه کیږي؟ او... نو که دا یو مشکل هم نه و بیا به خبره کیږي، ځکه که مونږ په خپلو خبرو پوره فکر ونکړو نو داسې قصه به شي لکه: له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت چې دی چې نبي کریم صلی الله علیه و سلم وفرمایل: إِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ رِضْوَانِ الله لَا يُلْقِي لَهَا بَالًا يَرْفَعُهُ الله بِهَا دَرَجَاتٍ، وَإِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ الله لَا يُلْقِي لَهَا بَالًا يَهْوِي بِهَا فِي جَهَنَّمَ [۹۲]. ژباړه: یقینًا بنده د الله د رضا یوه خبره کوي چې د ویونکي هېڅ پروا نه وي، خو الله تعالی یې پرې ډېرې درجې لوړوي. او یقینًا یو بنده د الله د غوسې یوه خبره کوي چې ویوونکی یې هېڅ پروا نه ساتي خو د هغې خبرې له امله په جهنم کې لاندې رسېږي.

همدا راز که د خپلې ژبې حفاظت ونکړو نو خدای مکړه پړمخې به مو جهنم ته ورسوي، ځکه د معاذ بن جبل رضي الله عنه په اوږده حدیث کې چې د جنت ته د داخلېدلو د عمل پوښتنه کوي وروسته رسول اللّه صلی اللّه علیه و سلم د دې ځواب تر څنگ د اسلام اساسي امر، د اسلام د ستنې او د اسلام د لوړې څوکې خبر

---

[۹۱](البخاري/ بَابُ حِفْظِ اللِّسَانِ/ رقم الحديث: ٦٤٧٥)

[۹۲](البخاري/بَابُ حِفْظِ اللِّسَانِ/ رقم الحديث: ٦٤٧٨)

ورکوي نو په آخر کې ورته فرمايي: أَلَا أُخْبِرُكَ بِمَلَاكِ ذَلِكَ كُلِّهِ؟ قُلْتُ: بَلَى يَا نَبِيَّ اللهِ! فَأَخَذَ بِلِسَانِهِ قَالَ: كُفَّ عَلَيْكَ هَذَا. فَقُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللهِ! وَإِنَّا لَمُؤَاخَذُونَ بِمَا نَتَكَلَّمُ بِـهِ؟ فَقَالَ: ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا مُعَاذُ، وَهَـلْ يَكُـبُّ النَّـاسَ فِي النَّـارِ عَلَى وُجُـوهِهِمْ - أَوْ عَلَى مَنَاخِرِهِمْ- إِلَّا حَصَائِدُ أَلْسِنَتِهِمْ [٩٣]. بيا يې وفرمايل: د دې ټولـو مخـکښ شـی درتـه ونه ښايم؟ ما وويل: ولې نه اې د الله رسوله! نو خپله ژبه يې ونيوله چې دا ټينګه کړه! ما وويل: يا رسول الله! مونږ به په خپلو خبرو هم نيول کيږو؟! هغه (صلی الله عليـه و سلم) وفرمايل: مور دې بوره شه معاذه! او آيا اور ته يې پړمخې غورځوي مګر د ژبو ريبل شوي (حقيقت کې خو همدا د ژبو لخوا خطـا کـوونکي پـه اور کـې پـړ مخـې غورځول کيږي)

مجاهدينو ورونو! مونږ او تاسې بايد تر نورو ډېـر د اللّـه تعـالی پـه اوامـرو کـې دقت وکړو، خدای مکړه داسې خبره مو له خولې څخه ونه وځي چې هم مو اعـمال ضائع شي او هم الله تعالی راڅخه نا راضه شي.

* * *

[٩٣] (الترمذي/ بَابُ مَا جَاءَ فِي حُرْمَةِ الصَّلَاةِ/ رقم الحديث: ٢٦١٦)

# حیاء کول د ربښتینو مؤمنینو ربښتینی صفت

حیاء د مؤمن لپاره داسې صفت دی چې باید په هر حال کې یې ملګری وي.

ملا علي قاري رحمه الله فرمايي: الحياء ان مولاك لا يراك حيث نهاك (مرقات المفاتيح) يعنې: حیاء دا ده چې ستا مولا تا په هغه ځای کې ونه ويني چې هغه ته ځنې منع کړی يې.

آیا هغه صفت مو خوښېږي چې الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه و سلم خوښ کړی وي؟! سلمان فارسي رضي الله عنه له رسول الله صلی الله علیه و سلم څخه روایت کوي، چې فرمايي: إِنَّ اللهَ حَيِيٌّ كَرِيمٌ يَسْتَحْيِي إِذَا رَفَعَ الرَّجُلُ إِلَيْهِ يَدَيْهِ أَنْ يَرُدَّهُمَا صِفْرًا خَائِبَتَيْنِ [٩٤]. يعنې: الله تعالی ډېر زيات حیاء کوونکی او کریم (بغیر له غوښتنې ورکوونکی) دی، الله تعالی ته حیاء ورځي (كما يليق بشأنه) چې يو بنده ورته لاسونه پورته کړي او هغه يې تش تور بېرته رد کړي.

همدا راز له يعلی رضي الله عنه څخه روایت دی چې: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَغْتَسِلُ بِالْبَرَازِ بِلَا إِزَارٍ، فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ حَيِيٌّ سِتِّيرٌ يُحِبُّ الْحَيَاءَ وَالسَّتْرَ؛ فَإِذَا اغْتَسَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْتَتِرْ [٩٥].

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه و سلم يو کس وليد چې په بيديا کې يې له لنګ پرته غسل کاوه، نو منبر ته پورته شو، د الله تعالی حمد او ثنا يې وويله، بيا يې وفرمايل: الله تعالی ډېر زيات حیاء کوونکی او ډېر زيات ستر کوونکی دی؛ حیاء او

---

[٩٤] (سنن الترمذي ت بشار (٥/ ٤٤٨ بيروت)

[٩٥] (سنن ابي داود/ بَابُ النَّهْيِ عَنِ التَّعَرِّي/ رقم الحديث: ٤٠١٢)

ستر خوښوي، نو کله چې تاسو کې کوم يو غسل کوي نو ستر دې وکړي. کـه مـو د الله تعالی خوښ صفت خوښيږي؛ نو راځئ چې حيا وکړو!

**حياء ايمان دی، او د ايمان ځای جنت...**

آيا ايمان، د ايمان مهمـه شـعبه، او د ايـمان اخـلاق درتـه اهميـت لـري؟؟؟ لـه ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې وايي: رسول الله صلی الله عليه و سـلم وفرمايل: الْحَيَاءُ مِنَ الْإِيمَانِ، وَالْإِيمَانُ فِي الْجَنَّةِ، وَالْبَذَاءُ مِنَ الْجَفَاءِ، وَالْجَفَـاءُفِي النَّـارِ. [٩٦] يعنې: حياء له ايمان څخه ده او ايمان (اهل د ايمان) به په جنت کـې وي، او بـې حيايي له جفاء (بې وفايي) څخه ده، او جفاء (اهل د جفاء) په اور کې وي.

حياء د ايمان مهمه شعبه ده، که په مونږ کې حياء وي نو ايمان او د ايمان مهمه شعبه به مو تر لاسه کړي وي، ځکه: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْإِيمَانُ بِضْعٌ وَسَبْعُونَ - أَوْ: بِضْـعٌ وَسِـتُّونَ- شُـعْبَةً، فَأَفْضَـلُهَا قَوْلُ: لَا إِلَهَ إِلَّا الله، وَأَدْنَاهَا إِمَاطَةُ الْأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ، وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الْإِيمَـانِ. [٩٧] ژباړه: له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول اللـه صـلی اللـه عليـه و سلم وفرمايل: ايمان څو اويا ـــڅو شپېته— شعبې دی، تر ټولو غوره يې د لا الـه الا الله وينا ده، او تر ټولو کمزورې يې له لارې څخه د موذي ضررناکو شيانو لرې کول دي، او حياء د ايمان يوه شعبه ده.

د ايمان اخلاق بايد په هر مؤمن کې وي او مجاهد خـو بـه خامخـا د ايـمان پـه اخلاقو سمبال وي، د ايمان اخلاق يعنې حياء... ځکه: له انس رضي اللـه عنـه څخـه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايـل: إِنَّ لِكُلِّ دِينٍ خُلُقًا، وَخُلُقُ

---

[٩٦](سن ابن ماجة/ باب في الحياء/ رقم الحديث: ۴۱۸۴)

[٩٧](المسلم/ باب شعب الايمان/ رقم الحديث: ۳۵)

الْإِسْـلَامِ الْحَيَـاءُ. [۹۸] ژبـاړه: یقینًـا هـر دیـن لـره (ځـانګړي) اخـلاق وي، او د اسـلام (ځانګړي) اخلاق حیاء ده.

## آیا داسې عمل کوئ چې ټول په ټوله خیر وي؟

له عمران بن حصین رضي الله عنه څخه روایت دی چې فرمایي: قَـالَ النَّـبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْحَيَاءُ لَا يَأْتِي إِلَّا بِخَيْرٍ... (البخاري) یعنې: رسول الله صلی اللـه علیه و سلم وفرمایل: حیاء له خیر پرته بل څه نه راوړي... حیاء داسې عمل دی چې مونږ ته ټول په ټوله خیر راکوي او بیا هم مونږ ترې غافله یو؟ نو راځئ چې حیـاء پـه هر وخت او حالت کې غوره کړو!.

## حیاء د انحضرت (ص) او ټولو انبیاوو خاص صفت دی

له ابوسعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي فرمایی: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدَّ حَيَاءً مِنَ الْعَذْرَاءِ فِي خِدْرِهَا [۹۹]. رسول الله صلی الله علیه و سلم تر باکرې پېغلې چې پخپل څادر کې وي هم ډېر زیات حیاء کوونکی و.

چې د الله تعالی پیغمبران حیاء کوي نو زه او ته؟ رسول اللـه صـلی اللـه علیـه و سلم قصه کوله چې: موسی علیه السلام ډېر حیاناک او ستر کوونکی سړی و، د هغـه د بدن له (محرم) پوستکي څخه هېڅ برخه چا نشوه لیدلی. د هغه د حیاء غوښتنې له امله؛ د بني اسرائیلو ځینو ځورونکو وځوراوه. هغوی وویل: دا دومـره سـتر نـه کـوي مګر صرف د کوم عیب له امله یې کوي چـې د هغـه پـه بـدن بانـدې دی، یـا برګـی مرض دی، یا ادره (د خاص اندام پړسېدل) مرض دی، او یا کوم بـل آفـت دی. اللـه تعالی وغوښتل چې موسی علیه السلام له دې تهمتونو څخه بري کړي، نـو یـوه ورځ ځانته تنها شو، خپل کالي یې په تیږه کېښودل او غسل یې پیل کړ. کله چې خـلاص شو، خپلو کالیو ته راوګرځېد چې را وایې خلي، هغې تیږې یې په کالیو تجـاوز وکـړ

---

[۹۸](سنن ابن ماجه/ باب الحیاء/ رقم الحدیث: ۴۱۸۱)

[۹۹](صحیح المسلم في الفضائل باب كثرة حیائه صلی الله علیه وسلم رقم ۲۳۲۰)

(ویې تښول) موسی علیه السلام خپله لکړه راواخیسته او په تېږه پسې شو. لګیا شو او ویل یې: اې تېږې! زما کالي! اې تېږې! زما کالي! تـر څـو چـې د بنـي اسرائیلـو یـوه ټولي ته ورسېد، هغوی موسی علیه السلام په لوڅ حالت کې ولید چې د الله تعالی له ښایسته مخلوق څخه دی. نو په دغه طریقه سره الله تعالی د هغـوی لـه خـبرو څخـه بري کړ او تېږه هم ودرېدله. نو موسی علیه السـلام خپـل کـالي راواخیسـتل او وایـې غوستل او لګیا شو تیږه یې پخپلې لکړې وهله، په اللّـه قسـم! پـه هغـه تېـږه د هغـه د وهلو آثار شته، درې - یا څلور- یا پنځه. همدا د الله تعالی دا قول دی چې:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ آذَوْا مُوسَى فَبَرَّأَهُ اللهُ مِمَّا قَـالُوا وَكَانَ عِنْـدَ اللهِ وَجِيهًا. (الاحزاب/٦٩)

ژباړه: «ای هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) مه کیږئ په شان د هغو کسانو چې ایذاء یې رسولې وه، موسی (ع) ته پس پـاک کـړ دغـه (موسـی ع لره) الله له هغو دروغو چې دوی پرې ویل او وو (موسی ع) په نزد د الله کـې وجیـه (مخور خاوند د عزت) ».

د جهـادي سـنګر یـارانو! مـونږ او تاسـو تـه د اسـلام دمبـارک دیـن د حقیقـي ساتونکو نسبت کیږي؛ هغه صفت چې د ایمان برخـه ده، اللّـه تعـالی خـوښ کـړی، رسول الله صلی الله علیه وسـلم پـه کاملـه معنـا عمـلي کـړی، مـونږ او تاسـو تـه یـې لارښوونه کړې، او... نو داسې صـفت بـه ولـې نـه عمـلي کـوو؟؟؟ د جهـادي سـنګر ملګري باید تر هر چا ډېر د حیاء په ښایسته صفت ښکلي او پټ وي.

* * *

## اللّٰه تعالی ته په هر حالت کې رجوع او توبه کول

کله چې څوک له چا نه د کوم شي غوښتنه کوي نو بهتره دا وي چې د هغه پـه وړاندې پاک او په کوم جرم ککړ نه وي. له انبیاوو علیهم السلام پرته معصوم څـوک نشته، له هر چاه گناه صادیږي، راځئ پر خپلو گناهونو پښېمانه شـوو، اللّٰـه تعـالی تـه توبه باسو، که توبه ونه باسو، نو اللّٰه تعالی له گنهگارانو سره مرسته نه کوي.

اللّٰه تعالی د هر چا گناهونه ښني، کله چې هغه اللّٰه تعالی ته توبه وباسي: **قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللهِ إِنَّ اللهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ** (الزمر/۵۳)

ژبـاړه: « و وایـه (ای محمـده چـې فرمـایې اللّـه) ای بنـدگانو (مؤمنـانو) زمـا هغوکسانو چې اسراف یې کړی دی پر نفسونو خپلو مه نا امیده کیږئ له رحمته داللّٰه (ځکه چې) بېشکه اللّٰه مغفرت کوي ښني گناهونه ټول (اگـر کـه ډیـر هـم وي، بېلـه شرکه) بېشکه چې اللّٰه هم دی، دی ښه ښښونکی (د خطاگانو) ډیر رحم والا (په انعام د اجر او ثواب سره)».

که مونږ اللّٰه تعالی ته توبه وباسو اللّٰه تعالی مو خامخا گناهونه ښښي، ځکه توبه د اللّٰه تعالی امر دی:

**يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا تُوبُوٓا إِلَى اللهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُكَفِّرَ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَٰرُ**. (التحریم/۸)

یعني: «ای هغو کسـانو چـې ایـمان یـې راوړی دی (ای مؤمنـانو) توبـه وباسـئ تاسي اللّٰه ته توبه خالصه رښتیا د زړه له کومې امید دی چې رب سـتاسي وبـه رژوي له تاسي ځني گناهونه ستاسي او داخل به کړي تاسي هغو جنتـو تـه چـې بهیـږي لـه لاندې د (ونو او ماڼیو د) هغو (څلور قسمه) ویالې».

الله تعالی له توبه کوونکو سره محبت کوي او جنتونو ته یې داخلوي؛ راځئ چې الله تعالی ته توبه وباسو او ځانونه د الله تعالی د محبت او جنت مستحق وګرځوو.

د بنده توبه قبلول سره له دې چې د الله تعالی د رحم مظهر او د الله تعالی د جمال صفت دی؛ همدا راز توبه کول د مجاهدینو لپاره د نصرت لوی لامل هم دی، ځکه الله تعالی فرمایي: وَتُوبُوا إِلَى اللهِ جَمِيعاً أَيُّهَ الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (النور/۳۱) ژباړه: «او راجع شئ توبه وباسئ تاسي الله ته ټول ای مؤمنانو! د پاره د دې چې تاسي شېګڼه او خلاصی ومومئ (په دارینو کې) ».

مجاهدینو ورونو! که غواړئ چې په هر حال کې الله تعالی نصرت در په برخه کړي، په هر ډګر کې بریالي شئ! نو په هر حالت کې او په خاصه توګه تر جهادي فعالیت وړاندې الله تعالی ته له خپلو ټولو ګناهونو توبه وباسئ تر څو الله تعالی راسره نصرت وکړي او دښمن مو راته مات کړي.

## توبه کول ګناه داسې پاکوي لکه بیخي چې شوې نه وي

د الله تعالی رحم ډېر لوی دی او پکار ده چې د الله تعالی په رحم کې غور وکړو او په ځان یې اثر ښکاره کړو. الله تعالی خپل ګنهګار بنده هم داسې ښېي لکه چا چې بیخي ګناه نه وي کړي: عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: التَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ، كَمَنْ لَا ذَنْبَ لَهُ. [۱۰۰] ژباړه: له ابوعبیده بن عبدالله څخه روایت دی چې له خپل پلار څخه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: له ګناه څخه توبه کوونکی داسې دی لکه چا لره چې بیخي ګناه نه وي.

راځئ چې ځانونه داسې کړو لکه چا چې بیخي ګناه نه وي کړې او الله تعالی ته توبه وباسو.

---

[۱۰۰] (سنن ابن ماجه/بَابُ ذِكْرِ التَّوْبَةِ/ رقم الحديث: ۴۲۵۰)

## د بنده په توبه باندې د الله تعالی خوښي

مونږ او تاسو د الله تعالی په رضا پسې راوتلي یو او ځان ور رسول غواړو، اللّـه تعالی د خپل بنده په توبې کولو باندې دومره خوښیږي چې: لـه انس بـن مالـک رضي الله عنه څخه روایت دی چې: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّمَ: لَلَّهُ أَشَـدُّ فَرَحًا بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ حِينَ يَتُوبُ إِلَيْهِ مِنْ أَحَدِكُمْ كَانَ عَلَى رَاحِلَتِهِ بِأَرْضِ فَلَاةٍ، فَانْفَلَتَتْ مِنْهُ وَعَلَيْهَا طَعَامُهُ وَشَرَابُهُ، فَأَيِسَ مِنْهَا، فَأَتَى شَجَرَةً، فَاضْطَجَعَ فِي ظِلِّهَا قَدْ أَيِسَ مِـنْ رَاحِلَتِهِ، فَبَيْنَا هُوَ كَذَلِكَ إِذَا هُوَ بِهَا قَائِمَةً عِنْدَهُ، فَأَخَذَ بِخِطَامِهَـا، ثُـمَّ قَـالَ مِـنْ شِـدَّةِ الْفَرَحِ: اللَّهمَّ أَنْتَ عَبْدِي وَأَنَا رَبُّكَ. أَخْطَأَ مِنْ شِدَّةِ الْفَرَحِ [١٠١]. ژباړه: رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: الله تعالی د خپل بنده په توبه تر دې هم ډېر خوشاله کیږي لکه ستاسو یو کس چې پخپلې اوښې سپور وي او په یوه شاړه ځمکه کـې وي. دا اوښه ترې ورکه شي او په هغې یې خوراک او څښـاک بـار وي، آخـر یـې لـه لټولـو مایوسه شي، یوې ونې ته راشي او د هغې سیوري ته ډډه ولګوي، دا کس په همـدې حالت کې وي چې نا څاپه ویني چې اوښه یې ورته ولاړه ده. تر مهار یې ونیسي او د ډېرې خوشالۍ له امله ووایي چې: یا اللّـه تـه مـې بنـده او زه دې رب یـم. د ډېـرې خوشـالۍ له امـــله خطا شي.

نو ګرانو لوستونکو! ولې به د الله تعالی له دومره خوښۍ سره هم خپل خـالق او رازق ته توبه نه باسو؟؟

تر څو چې د انسان روح له بدنه وتلی نه وي، دتوبې دروازه ورته خلاصه وي

له عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسـول اللّـه صـلی اللّـه علیه و سلم وفرمایل: إِنَّ اللهَ – عز وجل– يَقْبَلُ تَوبَةَ العَبْدِ مَا لَـمْ يُغَرْغِـرْ. [١٠٢] یعنـي: الله تعالی د بنده توبه تر هغه قبلوي تر څو چې روح له ستوني نه وي وتلی.

---

[١٠١] (المسلم/ بَابٌ فِي الْحَضِّ عَلَى التَّوْبَةِ وَالْفَرَحِ بِهَا/ ٢٧٤٧)

[١٠٢] (الترمذي/ بَاب فِي فَضْلِ التَّوْبَةِ وَالاِسْتِغْفَارِ وَمَا ذُكِرَ مِنْ رَحْمَةِ اللهِ بِعِبَادِهِ/ رقم الحديث: ٣٥٣٧)

هر مؤمن باید دا کوښښ وکړي چې الله تعالی ته زر تر زره توبه وباسي او په هر حالت کې توبه وباسي. ځکه د ځنکدن حالت معلوم نه دی، خدای مکړه که ناڅاپه مرگ راغی نو الله ته به څه ځواب ورکو؟؟

همدا راز په حدیث شریف کې راځي چې: عن أبي هُريرةَ - رضي الله عنه- قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم: مَنْ تَابَ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا تَابَ الله عَلَيهِ. [۱۰۳] ژباړه: له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: چا چې مخکې تر دې توبه وویسته چې لمر له مغرب څخه راپورته شي نو الله تعالی به یې توبه قبوله کړي.

لازمه ده چې مونږ او تاسې او په ځانگړي توگه هر مجاهد په هر حالت کې الله تعالی ته له خپلو خطاوو څخه توبه وباسو، تر څو؛ الله تعالی راسره محبت وکړي، الله تعالی مو گناهونه داسې پاک کړي لکه بیخي مو چې کړي نه وي، او الله تعالی مو جنتونو ته داخل کړي.

دا چې رښتینې توبه به څنگه باسو؟ علماء کرامو د توبې د قبلېدلو لپاره درې شرائط بیان کړي دي: لومړی: له گناه څخه بشپړ لرې والی.

دوهم: په کړې گناه باندې پوره پښېمانتیا.

دریم: کامل عزم چې بیا به داسې نه کوم او دالله تعالی هغه حقوق چې قضاء یې راوړل کیږي، د هغو قضاء به راوړي.

او که دا گناه د انسانانو له حق سره تړلې گناه وي نو له دې دریو شرائطو سربېره دا شرط هم شته چې د هغه کس حق بېرته ادا کړی شي.

* * *

[۱۰۳](مسلم/ بَابُ اسْتِحْبَابِ الِاسْتِغْفَارِ وَالِاسْتِكْثَارِ مِنْهُ/ رقم الحديث: ۲۷۰۳)

## د یتیم کفالت د هر مجاهد حتمي فریضه

زمونږ خپل حالت هم داسې دی چې ځنې ډیر مهم کارونه مو زړه غواړي چې ترسره یې کړو، مگر مشکل دا وي چې همدې د زړه غوښتونو او ارمانونو پوره کولو ته مو لاس نه رسېږي، خو پر دې سربیره همدا مشکلات مو باید د مظلومو هیوادوالو، یتیمانو، اسیرانو او معلولینو سره له مرستې او همکارۍ څخه راونه گرځوي، په ځانگړې توگه د مجاهدینو یتیمان باید راته د خپلو اولادونو په شان گران وي او د ربنتیا یې هم په عملي توگه همدومره خیال وساتو.

له سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روایت دی، چې نبي کریم صلی الله علیه و سلم وفرمایل: أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ كَهَاتَيْنِ فِي الْجَنَّةِ. وَقَرَنَ بَيْنَ أُصْبُعَيْهِ الْوُسْطَى وَالَّتِي تَلِي الْإِبْهَامَ. [۱۰٤] ژباړه: زه او د یتیم کفالت کوونکی به په جنت کې داسې یو لکه دا (خپله د شهادت او منځنۍ گوتې یې یو ځای کړې). د رسول الله صلی الله علیه وسلم ملتیا تر هر څه لوی نعمت دی. که خلک له یتیمانو سترگې پټوي، نو مجاهدینو ته خو اوس دومره یتیمان ورله غاړې دي چې په هېڅ امکان ترېنه سترگې نشي پټېدلی او په هر قیمت چې وي باید د هغوی کفالت په غاړه واخلو.

له ابو امامه رضي الله عنه څخه روایت دی، چې: رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: مَنْ مَسَحَ رَأْسَ يَتِيمٍ، لَمْ يَمْسَحْهُ إِلَّا لِلَّهِ كَانَ لَهُ بِكُلِّ شَعْرَةٍ مَرَّتْ عَلَيْهَا يَدُهُ حَسَنَاتٌ، وَمَنْ أَحْسَنَ إِلَى يَتِيمَةٍ، أَوْ يَتِيمٍ عِنْدَهُ كُنْتُ أَنَا وَهُوَ فِي الْجَنَّةِ كَهَاتَيْنِ. وَقَرَنَ بَيْنَ أُصْبُعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى. [۱۰۵]

ژباړه: چا چې د یتیم په سر د الله جل جلاله لپاره لاس ورتېر کړ، د هغه (لاس تېروونکي) لپاره به د یتیم دسر د هر هغه وېښته په بدل کې (چې د هغه لاس پرې تېر

[۱۰٤] (سنن ابي داود/ بَابٌ فِي مَنْ ضَمَّ الْيَتِيمَ/ رقم الحديث: ۵۱۵۰)

[۱۰۵] ( مسند أحمد طبع: الرسالة (۳٦/ ۴۷۴)

شوی) ډېرې نېکۍ وي. او چا چې کومې یتیمې یا کوم یتیم سره چې له هغه سره وي نیکي وکړه، زه او هغه نیکي کوونکی به په جنت کې داسې یو لکه دا (خپله د شهادت او منځنۍ ګوتې یې یو ځای کړې)

د یتیم کفالت د خپلو ټولو فضائلو سربېره د هر امیر مسئولیت هم دی. هغه جهادي امیران چې ملګري یې شهیدان شوي او د هغوی یتیمان پاتې دي په خپل امیر باندې پوره حق لري. دا مهمه نه ده چې که کوم مجاهد د شهید د یتیمانو پوښتنه کوي نو خامخا به پوره مصارف ورکوي، بلکې د هغوی د زړه د ساتلو لپاره خالي پوښتنه یې هم داسې زړه رغوي چې مونږ یې تصور نشو کولی. د شهید د یتیمانو سترګې همدې ته پاتې وي چې زما د شهید پلار جان ملګري راځي او زما حال به اخلي، خو که مونږ یې تشه پوښتنه هم ونکړو نو څومره مایوسي به ورته درېږي؟.

د الله د رضا په خاطر!

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ملتیا په خاطر!

یتیمان مه هېروئ!

که نن یې هېر کړئ د الله په حضور کې به د خپل هغه شهید ملګري ځواب څنګه ورکوئ چې د هغه تر شهادت وروسته یې یتیمان بې سر پرسته پاتې کېږي او په داسې مشکلاتو کې راګېرېږي چې د خپل پلار په شتون کې به نه ورسره مخامخ کېدل.

په هرې خوشالۍ او هر اختر کې باید داسې تصور وکړو! چې: «زه یتیم یم» نو د خپل شهید پلار جان امیر او ملګرو ته به کومې هیلې و لرو؟ بېله شکه داسې هیلې به ترې لرو لکه یو ماشوم چې یې له خپل پلار څخه لري. نو راځئ چې تر ممکنه حده د خپلو شهیدو ملګرو د یتیمانو هیلې او اړتیاوې پوره کړو او ستونزې یې حل کړو!

## لمونځ او د لمانځه اهمیت

کله چې مونږ د جهاد اهمیت او د هغه د پرېښودلو عذابونه بیانوو، هېڅکله دا معنا نه لري چې که چا جهاد وکړ بس له نورو اعمالو خلاص دی. مونږ په پیل کې دا خبره وکړه چې مجاهد کېدل د الله تعالی د مقربیت دعوه ده او د مقربیت دعوه کې شرط دا دی چې باید بیا د مقربینو اعمال په کامله معنا سرته ورسوو.

په مؤمنانو باندې په فرض کړل شوو اعمالو کې تر ټولو ډېر د لمانځه اهتمام راغلی. له ابوقتاده بن ربعي رضي الله عنه څخه روایت دی چې وایي: رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: قَالَ اللهُ تَعَالَى: إِنِّي فَرَضْتُ عَلَى أُمَّتِكَ خَمْسَ صَلَوَاتٍ، وَعَهِدْتُ عِنْدِي عَهْدًا؛ أَنَّهُ مَنْ جَاءَ يُحَافِظُ عَلَيْهِنَّ لِوَقْتِهِنَّ أَدْخَلْتُهُ الْجَنَّةَ، وَمَنْ لَمْ يُحَافِظْ عَلَيْهِنَّ فَلَا عَهْدَ لَهُ عِنْدِي (۱۰٦). یعنې: الله تعالی فرمایي: ما ستا په امت پنځه لمونځونه فرض کړي، او له ځان سره مې عهد کړی چې: هر څوک چې په داسې حال کې راغلل چې په دې لمونځونو یې پخپل وخت سره محافظت کاوه نو زه به یې جنت ته داخل کړم، او چا چې په دې باندې محافظت نه کاوه، نو زما سره هېڅ عهد نه لري.

په احادیثو کې په ډېرو ځایونو کې دا مفهوم په واضحه توگه راغلی چې د مؤمن او مشرک تر منځ فرق لمونځ دی، او همدا راز د الله تعالی او د بنده تر منځ عهد لمونځ دی. د مجاهد لپاره حتمي ده چې د لمانځه په موضوع کې تر عامو مؤمنانو هم ډېر محتاط واوسي.

لمونځ د الله تعالی له لوري د نصرت یو ستر لامل دی، یعنې په کوم جهادي گروپ کې چې د لمانځه اهتمام وي همدومره به د الله تعالی نصرت ورسره ډېر وي. همدا راز لمونځ مسلمان له گناهونو څخه ساتي، څکه الله تعالی فرمایي:

---

(۱۰٦)(ابوداود/ بَابٌ فِي الْمُحَافَظَةِ عَلَى وَقْتِ الصَّلَوَاتِ/ رقم الحدیث: ۴۳۰)

إِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنكَرِ وَلَذِكْرُ اللهِ أَكْبَرُ وَاللهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُونَ (العَنكبوت/۴۵)ژباړه: «بېشکه لمونځ منع کوي (لمونځ کوونکی) له بې حیایۍ او بد کار څخه، او خامخا یادول د الله ډېر لوی دی او الله ته معلوم دی هر هغه (عمل) چې کوئ یې تاسي (نو جزاء به یې درکړي په ښه ډول او طریقه سره)».

کله چې کامل لمونځ مونږ له بدو کارونو څخه منع کړي نو د الله تعالی نصرت هم راسره ډېرېږي او الله تعالی فتحه راکوي.

د مجاهد لپاره تر نورو ډېر ضرور ده چې په هر حالت کې په جماعت سره د لمانځه خیال وساتي. د جماعت د لمانځه په باره کې په مجاهدینو کې څه سستي شته، او یو لوی لامل یې دا دی چې معاصر جهاد کې د دښمن کوښښونه او د جاسوسانو او بې دینانو زیاتېدل د دې لامل شول چې مجاهدین ډېر کله د جماعت لمانځه ته نشي تللی. رسول الله صلی الله علیه و سلم فرمایي:

وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ بِحَطَبٍ فَيُحْطَبَ، ثُمَّ آمُرَ بِالصَّلَاةِ فَيُؤَذَّنَ لَهَا، ثُمَّ آمُرَ رَجُلًا فَيَؤُمَّ النَّاسَ، ثُمَّ أُخَالِفَ إِلَى رِجَالٍ فَأُحَرِّقَ عَلَيْهِمْ بُيُوتَهُمْ... [۱۰۷] په الله قسم زما زړه کې دا راګرځي چې د لرګیو امر وکړم او لرګي راټول شي، بیا د لمانځه امر وکړم د لمانځه لپاره آذان وشي، بیا یو سړي ته امر وکړم او هغه امامت وکړي او زه هغو خلکو ته ورشم چې له لمانځه پاتې دي او کورونه پرې وسوځوم.

د رسول الله صلی الله علیه و سلم دې ذکر شوي خبرداري ته که نظر وکړو بیا به را معلومه شي چې د لمانځه اهمیت د الله په وړاندې څومره زیات دی. خو دا چې د مجاهدینو کوم عذر دی رښتیا هم مهمه خبره ده. چې کله د جماعت له لمانځه څخه مشکل جوړېدلی شي نو عمومي مسجد ته دې نه ځي خو دا د دې معنا نه لري چې بیا دې خپل مرکز کې هم بې جمعې پاتې شي. رسول الله صلی الله

[۱۰۷](صحیح البخاري/بَابُ وُجُوبِ صَلاَةِ الجَمَاعَةِ/رقم الحدیث: ۶۴۴ /و أخرجه مسلم في المساجد ومواضع الصلاة باب فضل صلاة الجماعة رقم ٦٥١).

عليه و سلم د يوه اوږده حديث په ترڅ کې فرمايي: وَإِنَّ صَلَاةَ الرَّجُلِ مَعَ الرَّجُلِ أَزْكَى مِنْ صَلَاتِهِ وَحْدَهُ، وَصَلَاتُهُ مَعَ الرَّجُلَيْنِ أَزْكَى مِنْ صَلَاتِهِ مَعَ الرَّجُلِ، وَمَا كَثُرَ فَهُوَ أَحَبُّ إِلَى اللهِ تَعَالَى. (سنن ابي داود) ژباړه: د يـوه سـړي لمـونځ لـه يـوه سـړي سره تـر تنهـا لمونځ غوره دی او د يوه سړي لمونځ لـه دوو سره تـر يـوه غـوره دی، او هـر څـومره چې زياتيږي الله تعالی ته خوښ دی.

نو د همدې حديث شريـف پـه اسـاس مجاهـد تـه لازمـه ده چـې د جماعـت لمونځ هېڅکله پرېنـږدي. کـه عمـومي مسـجد تـه نشي ـ تللـی، پخپلـو منځـو کـې د جماعت اهتمام حتمي دی.

همدا راز د ابن عباس رضي الله عنهما په روايت کې هم راځي چې: رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايل: مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَفَلَمْ يَأْتِهِ فَلَا صَـلَاةَ لَهُ، إِلَّا مِـنْ عُـذْرٍ.[۱۰۸] يعنې: چا چې آذان واورېد او ورته رانغی نو د هغه لمونځ لمونځ نه دی، پرتـه لـه عـذر څخـه. لـه دې احـاديثو څخـه د جماعـت د لمانځـه بيخـي زيـات اهميـت څرګنديږي.

په لمانځه کې د جماعت تر اهتمام وروسته بله مهمه موضوع په لمانځـه کـې د توجه خبره ده. د الله تعـالی خـبره رښـتيا ده چـې: إِنَّ الصَّـلٰوةَ تَـنْهٰى عَـنِ الْفَحْشَـآءِ وَالْمُنكَرِ. يعني: بېشکه لمونځ منع کوي (لمونځ کوونکی) له بـې حيـايۍ او بـد کـار څخه». خو بيا هم له مونږ څخه خطاوې کيږي؛ لامل يې همدا دی چې زمونږ لمونځ لمونځ نه دی.

له عمار ابن ياسر رضي الله عنهما څخه روايت دی، نوموړی وايي چـې مـا لـه رسول الله صلی الله عليه و سلم څخه واورېدل چې ويل يې: إِنَّ الرَّجُلَ لَيَنْصَرِفُ وَمَا كُتِبَ لَهُ إِلَّا عُشْرُ صَلَاتِهِ، تُسْعُهَا، ثُمْنُهَا، سُبْعُهَا، سُدْسُهَا، خُمْسُهَا، رُبْعُهَا، ثُلْثُهَا، نِصْفُهَا.

---

[۱۰۸](سنن ابن ماجه/ بَابُ التَّغْلِيظِ فِي التَّخَلُّفِ عَنِ الْجَمَاعَةِ/ رقم الحديث: ۷۹۳)

(۱۰۹) یعنې: یقینًا یو سړی راګرځي (له لمانځه څخه) او هیڅ اجر ورته نه وي مګر صرف لسمه برخه، یا نهمه برخه، یا اتمه برخه، یا اومه برخه، یا شپږمه برخه، یا پنځمه برخه، یا څلورمه برخه، یا دریمه برخه، او یا هم نیم په نیمه.

د دې حدیث په رڼا کې ویلی شو چې مونږ باید خپل لمونځونه داسې کړو چې اجر یې پوره په پوره وګټو، او هغه داسې کیږي چې لمونځ مو په کامله معنا په سنتو برابر وي.

په دې حدیث باندې هم ډېر غور پکار دی چې: لَا يَنْظُرُ اللّٰه عَزَّوَجَلَّ اِلَی صَلاۃِ عَبْدٍ لَا يُقِيْمُ فِيْهَا صُلْبَهُ بَيْنَ رُكُوْعِهَا وَ سُجُوْدِهَا. (۱۱۰) اللّٰه تعالی د هغه بنده لمونځ ته نه ګوري چې شا یې د رکوع او سجدو تر منځ قرار ونه نیسي (قومه او جلسه سمه ونه کړي).

له دې حدیث څخه په ډاګه څرګندیږي چې د لمانځه په ارکانو کې تعدیل کول حتمي دي. او مجاهد ته تر نورو ډېره مهمه ده چې لمونځ یې په کامله معنا په سنت طریقو سره برابر وي.

پاتې شوه دا خبره چې په لمانځه کې توجه په کومو اسبابو سره برابریږي؟! نو باید ووایم چې د لمانځه لپاره توجه برابرول حتمي ده او پکار ده چې هغه طریقې عملي کړو چې په هغو سره د لمانځه توجه برابریږي. هغه اسباب چې په لمانځه کې د توجه د برابرېدلو لپاره ما د علماوو په ویناوو کې اورېدلي او پخپله مې عملي کړي او نتیجه یې ډېره مثمره ده، په لاندې ډول دي:

په خپل لمانځه کې د اللّٰه عز وجل په عظمت او په خپل وړوکوالي کې فکر کول.

په لمانځه کې دا احساس چې اللّٰه تعالی راته ګوري.

---

(۱۰۹)(ابوداود/ بَابُ مَا جَاءَ فِي نُقْصَانِ الصَّلَاةِ/ رقم الحدیث: ۷۹٦)

(۱۱۰)(مسند أحمد طبع: الرسالة (۲٦/ ۲۱۱)

په داسې تصور سره لمونځ کول چې دا مې وروستی لمونځ دی.

د لمانځه آیاتو، دعاګانو او تسبیحاتو کې فکر کول.

د لمانځه لپاره مکمل تیاری کول.

په لمانځه کې قرائت په پوره شوق سره ویل او د ښه قرائت هڅې کول.

د خپل لمانځه لپاره ښه ځای انتخابول، داسې چې د توجه د اړولو کوم سبب نه وي.

په لمانځه کې مأثورې دعاګانې او د تلاوت آیتونه بدلول. یعنې د همېش لپاره یو سورت یا یو آیت نه ویل، بلکې د مختلفو ایاتونو او سورتونو لوستل.

دا هغه اسباب دي چې د لمانځه په توجه برابرولو کې له لمونځ کوونکي سره مرسته کولی شي.

مجاهد باید د جمعې اهتمام، د لمانځه د ظاهري ارکانو تعدیل، او د لمانځه توجه (خشوع او خضوع) تر نورو ډېر برابر وساتي.

❊ ❊ ❊

# تهجد، اشراق، استخاره او د حاجت لمونځ

## تهجد:

مجاهد باید په هر حالت کې الله تعالی ته تـر نـورو خلکـو ډیـر متوجـه وي. د جهاد فضائل بیخي ډیر دي، خو که مجاهد د جهاد له فضائلو سره نـور هغـه اعـمال هم وکړي چې د ډېرو اجرونو وعدې پرې شوي نو: نور علی نور...

د روایاتو سره سم رسول الله صلی الله علیه و سلم ته تهجد تر فرائضو وروسـته تر ټولو خوښ لمونځ و. رسول الله صلی الله علیه و سلم به دومره تهجد کـاوه چـې: عائشه رضي الله عنها فرمایي: رسول اللّـه صـلی اللّـه علیـه و سـلم بـه د شـپې دومـره درېده چې پښې به یې وپړسېدلې، نو ما ورته وویل: لِمَ تَصْنَعُ هَذَا؟ يَا رَسُولَ اللهِ! وَقَدْ غُفِرَ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ؟ قَالَ: أَفَلاَ أَكُونُ عَبْداً شَكُوراً! (متفـقٌ عَلَيْـهِ) یعنې: یا رسول الله! (صلی الله علیه و سلم) ولې داسې کوې؟ سره لدې چې پخواني او وروستني گناهونه درته ښبل شوي؟ هغه (صلی الله علیه و سلم) وفرمایل: آیـا زه د الله تعالی شکر کوونکی بنده نشم؟

چې رسول الله صلی الله علیه و سلم یې له معصومیت او هر رنگه فضـائلو سره کوي نو مجاهد به څنگه د جهاد د فضیلت له امله تهجد پرېږدي؟؟؟

الله تعالی د تهجد کوونکو صفت کوي:

تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ

(السجدة/۱۶)ژباړه: «لیرې کیږي ډډې د دوی له ځـایونو د خـوب (د پـاره د تهجـد) بولي دوی رب خپل (پټ له خلکو نه) له ویرې (د قهـره د اللّـه نـه) او لـه طمعـې (د رحمت د ده نه) او ځیني له هغو مالونو چې ورکړي دي موږ دوی ته لگوي (یـې پـه لاره د الله کې)».

همدا راز له ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايل: عَلَيْكُمْ بِقِيَامِ اللَّيْلِ؛ فَإِنَّهُ دَأَبُ الصَّالِحِينَ قَبْلَكُمْ، وَهُوَ قُرْبَةٌ إِلَى رَبِّكُمْ، وَمَكْفَرَةٌ لِلسَّيِّئَاتِ، وَمَنْهَاةٌ لِلْإِثْمِ. (الترمذي) ژباړه: په ځان باندې د شپې تهجد لازم کړئ! ځکه دا له تاسو وړاندې د صالحينو عادت او خصلت و او دا ستاسو رب ته نږدې والی دی، او د ګناهونو لپاره کفاره کوونکی دی، او له خطاوو او ګناهونو څخه نهي کوونکی دی.

د صحابه کرامو د تهجدو په هکله بايد ووايم چې: عَنْ عَبْدِالله رضي الله عنه قَالَ كَانَ الرَّجُلُ فِي حَيَاةِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم إِذَا رَأَى رُؤْيَا قَصَّهَا عَلَى رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم فَتَمَنَّيْتُ أَنْ أَرَى (أَنِّي أَرَى) رُؤْيَا فَأَقُصَّهَا عَلَى رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم وَكُنْتُ غُلَامًا شَابًّا وَكُنْتُ أَنَامُ فِي الْمَسْجِدِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم فَرَأَيْتُ فِي النَّوْمِ كَأَنَّ مَلَكَيْنِ أَخَذَانِي فَذَهَبَا بِي إِلَى النَّارِ فَإِذَا هِيَ مَطْوِيَّةٌ كَطَيِّ الْبِئْرِ وَإِذَا لَهَا قَرْنَانِ وَإِذَا فِيهَا أُنَاسٌ قَدْ عَرَفْتُهُمْ فَجَعَلْتُ أَقُولُ أَعُوذُ بِالله مِنَ النَّارِ قَالَ فَلَقِيَنَا مَلَكٌ آخَرُ فَقَالَ لِي لَمْ تُرَعْ فَقَصَصْتُهَا عَلَى حَفْصَةَ فَقَصَّتْهَا حَفْصَةُ عَلَى رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم فَقَالَ نِعْمَ الرَّجُلُ عَبْدُ الله لَوْ كَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ فَكَانَ بَعْدُ لَا يَنَامُ مِنَ اللَّيْلِ إِلَّا قَلِيلًا [۱۱۱].

ژباړه: عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ويل: د رسول الله صلی الله عليه و سلم په ژوند کې به چې کوم سړي خوب وليد نو د هغه قصه به يې رسول الله صلی الله عليه و سلم ته کوله، ما هم دا تمنا وکړه چې يو خوب مې ليدلی وی او رسول الله صلی الله عليه و سلم ته مې قصه کړې وی، او زه ځوان هلک وم. د رسول الله صلی الله عليه و سلم په وخت کې په جوماټ کې ويده کيدم؛ نو ما په خوب کې وليدل لکه دوه ملائکې چې ما ونيسي او اور ته مې بوځي، همدا اور د څاه په شان راغونډ

[۱۱۱] (صحيح البخاري/ بَابُ فَضْلِ قِيَامِ اللَّيْلِ/ رقم الحديث: ۱۱۲۱/ وأخرجه مسلم في فضائل الصحابة باب من فضائل عبد الله بن عمر رضي الله عنهما رقم ۲۴۷۹)

وي، دوه ښکرونه لري او په هغه کې داسې خلک وي چې زه یې پېژنم، نو زه لګیا شوم چې ویل مې: په الله سره پناه غواړم له اور څخه. هغه وایي: نو یوه بله ملائکه راسره مخامخ شوه، ماته یې وویل: ته نه یې وېرول شوی (مه وېرېږه!) نو ما دا خوب حفصې رضي الله عنها ته تېر کړ، او حفصې رضي الله عنها رسول الله صلی الله علیه و سلم ته تېر کړ. نو رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: عبدالله (رضي الله عنه) ډېر ښه سړی دی، خو چې د شپې یې لمونځ (تهجد) کولی. نو هغه (عبد الله بن عمر رضي الله عنه) به وروسته له دې د شپې بیخي لږ ویده کېده.

د پورتنۍ واقعې په اساس ویلی شو چې مونږ پر جهادي کارونو سربیره په نورو نفلي عباداتو کې هم باید ښه کوشش وکړو، خو په دې ځای کې دا یادونه ضروري ده چې امیر حق لري د ضرورت له امله یو ملګری له نفلي عبادتونو څخه منع کړي. که داسې وه چې ستا تهجد د دې لامل کېده چې سبا ته د خپلو ملګرو خدمت نشې کولی! یا هم په اطاعت کې درنه کمزوري کیږي! او یا هم سبا په نورو جهادي مصروفیتونو کې درنه سستي ښکاري نو تهجد مکوه! خو فکر یې ځان سره ساته او په هغو شپو کې چې ستړیا دې کمه وي تهجد مه پرېږده!

که تهجد ونکړو نو تر سهاره به د شیطان په رسیو کې تړلي یو: ابوهریره رضي الله عنه فرمایي: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وسَلَّمَ: عَلَى قَافِيَةِ رَأْسِ أَحَدِكُمْ بِاللَّيْلِ حَبْلٌ فِيهِ ثَلاَثُ عُقَدٍ، فَإِنِ اسْتَيْقَظَ فَذَكَرَ الله، انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَإِذَا قَامَ فَتَوَضَّأَ، انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَإِذَا قَامَ إِلَى الصَّلاَةِ، انْحَلَّتْ عُقَدُهُ كُلُّهَا، فَيُصْبِحُ نَشِيطًا طَيِّبَ النَّفْسِ، قَدْ أَصَابَ خَيْرًا، وَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ، أَصْبَحَ كَسِلاً خَبِيثَ النَّفْسِ لَمْ يُصِبْ خَيْرًا. [۱۱۲] یعني: رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: ستاسو د هر یو د سر له پاسه د شپې لخوا یوه رسۍ وي چې پکې درې غوټې وي، که دی (په تاسو کې یو) پاڅېد او د الله نوم یې واخیست؛ یوه غوټه خلاصه شوه، او چې پاڅېد او اودس یې وکړ نو بله غوټه

[۱۱۲](سنن ابن ماجة/ بَابُ مَا جَاءَ فِي قِيَامِ اللَّيْلِ/ رقم الحديث: ۱۳۲۹)

خلاصه شوه، او چې لمانځه ته پاڅېد نو ټولې غوټې خلاصې شوې، نو په داسې حال کې به سهار کړي چې ښه تازه او پاک نفس سره وي، او که داسې ونکړي نو داسې به سهار کړي چې سست او ناپاکه نفس سره به وي چې خير ته نه دی رسېدلی.

زما مجاهده وروره! الله تعالی ته ځان رسول او د الله نصرت ځان ته راجلبول؛ په نيمو شپو سېلابي اوښکې، فرياد، لمونځ او دعاء غواړي!.

## اشراق:

اشراق هغه وخت ته ويل کيږي چې له لمر راختلو څخه پنځلس دقيقې تېرې شوې وي، په دې وخت کې دوه يا څلور رکعته لمونځ کول د ډېر زيات اجر لروونکي دي. له انس رضي الله عنه څخه روايت دی:

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ صَلَّى الْغَدَاةَ فِي جَمَاعَةٍ، ثُمَّ قَعَدَ يَذْكُرُ اللهَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ كَانَتْ لَهُ كَأَجْرِ حَجَّةٍ وَعُمْرَةٍ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَامَّةٍ تَامَّةٍ تَامَّةٍ. [۱۱۳] ژباړه: رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايل: چا چې د سهار لمونځ په جمعې سره وکړ، بيا ناست و د الله تعالی ذکر يې کاوه، تر څو چې لمر راوخوت. بيا يې دوه رکعته لمونځ وکړ نو د هغه لپاره به د يوې عمرې او يوه حج ثواب وي. راوي وايي: رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايل: پوره پوره پوره (د پوره حج او عمرې اجر به ورکول کيږي)

## د څاښت لمونځ:

همدا راز له ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه و سلم وفرمايل: يُصْبِحُ عَلَى كُلِّ سُلَامَى مِنْ أَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ، وَكُلُّ تَسْبِيحَةٍ صَدَقَةٌ، وَتَهْلِيلَةٍ صَدَقَةٌ، وَتَكْبِيرَةٍ صَدَقَةٌ، وَتَحْمِيدَةٍ صَدَقَةٌ، وَأَمْرٌ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ، وَنَهْيٌ عَنِ

[۱۱۳] (الترمذي/ بَابُ ذِكْرِ مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الجُلُوسِ فِي المَسْجِدِ بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ/ رقم الحديث: ٥٨٦)

الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ، وَيُجْزِئُ أَحَدَكُمْ مِنْ ذَلِكَ كُلِّهِ رَكْعَتَانِ يَرْكَعُهُمَا مِنَ الضُّحَى. [۱۱۴] يعني: ستاسو د بدن په هر بند باندې هر سهار صدقه راځي. هره تسبيح صدقه ده، هر حمد صدقه ده، امر بالمعروف صدقه ده، نهي عن المنكر صدقه ده او له دې ټولو څخه ستاسو يوه لپاره هغه دوه رکعته کفايت کوي چې د څاښت پر مهال يې کوئ!

### د استخارې لمونځ:

د مجاهدينو لپاره استخاره ستره لارښوونه ده. په هغه کار کې چې مونږ له اللّٰه تعالى څخه خير وغواړو ان شاءاللّٰه اللّٰه تعالى راته پکې خير اچوي. مجاهدينو ته پکار ده چې په هر کار کې استخاره وکړي ځکه: جابر بن عبد اللّٰه رضي اللّٰه عنهما فرمايي چې: رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم به مونږ ته په هر کار کې د استخارې داسې تعليم راکاوه، لکه څنګه چې به يې مونږ ته د قرآنکريم د يو سورت تعليم راکاوه، او فرمايل به يې: کله چې له تاسو څخه څوک د کوم کار کولو اراده وکړي، نو دوه رکعته نفلي لمونځ دې وکړي، او بيا دې ووايي: اللّٰهُمَّ إِنِّيْ اَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيْمِ فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَلَا أَقْدِرُ وَتَعْلَمُ وَلَا أَعْلَمُ وَأَنْتَ عَلاَّمُ الْغُيُوْبِ اللّٰهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هٰذا الَامْرَ (د هغه کار نوم به اخلي) خَيْرٌ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ أَمْرِيْ فَاقْدُرْهُ لِيْ وَيَسِّرْهُ لِيْ ثُمَّ بَارِكْ لِيْ فِيْهِ وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هٰذا الَامْرَ (د هغه کار نوم به اخلي او يا به يې په ذهن کې حاضروي) شَرٌّ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ أَمْرِيْ فَاصْرِفْهُ عَنِّيْ وَاصْرِفْنِيْ عَنْهُ وَاقْدُرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ ارْضِنِيْ بِهِ. [۱۱۵]

ژباړه: الهي! زه ستا په علم سره له تا نه خير غواړم، او ستا په قدرت سره له تا نه طاقت غواړم، او ستا د لوی فضل او رحمت سوال درڅخني کوم، ځکه ته قادر يې، او زه عاجز يم، او ته پوهيږې او زه نه پوهيږم، او ته په غيبو ښه پوه يې. يا اللّٰه! که ستا په

[۱۱۴] ( مسند أحمد طبع: الرسالة (۳۵/ ۳۷۸)

[۱۱۵] (رواه البخاري في بَاب مَا جَاءَ فِي التَّطَوُّعِ مَثْنَى مَثْنَى)

علم کې دا کار –د هغه کار نوم به اخلي– زما لپاره په دين او دنيا کې، او انجام د کار کې خير وي، نو ته يې زما په برخه کړې، او ما ته يې آسانه کړې، او بيا زما لپاره پـه هغه کې برکت واچوې. او که ستا په علم کې دا کار زما لپاره په ديـن او دنيـا کـې، او په انجام د کار کې بد دی، نو له ما نه يې وګرځوې، او ما له هغه نه وساتې، او مـا تـه خير را په برخه کړې چيرته چې وي، او بيا ما په هغه سره خوشاله او راضي کړې!.

د استخارې په هکله دا ځينې خبرې اړيني دي:

استخاره په هر نېک کار کې بهتره ده: که هغه کـار شخصي-وي يـا اجتماعـي، که جهادي وي او که عام، که لوي وي او يا هم وړوکی. پـه اسـتخاره کـې د خـوب ليدل شرط نه دي، بلکې د زړه ميلان کفايت کوي.

استخاره په واجبي کارونو کې نه کيږي. د الله تعالی اوامر اسـتخاره نـه غـواړي بلکې حتمي به يې کوو. هو! هغه کارونه چې د انسان فکر او اختيار ته سپارل شـوي په هغه کې استخاره بهتره ده. لکـه د کـافر وژل د اللـه تعـالی امـر دی، همـدا د کـافر قتلول استخاره نه غواړي، خو دا استخاره کېدلی شي چې په کمين کې يې ووژنـم او که په تعرض کې؟؟ او همدا راز هغه کارونه چې د امير لخوا امـراً ويـل کېـږي؛ کـټ مټ همداسې حکم لري، چې په کولو او نـه کولـو کـې يـې اسـتخاره نشـته خـو کـه طريقه يې امير زمونږ رايې ته پرېښې وه بيا يې د طريقې په هکله استخاره کولی شو.

### د حاجت لمونځ

د هر جهادي ضرورت او اړتيا لپاره ضروري ده چې صلاة الحاجـة (د حاجـت لمونځ) هېر نکړو. عبد الله بن ابي اوفی رضي الله عنه وايـي چـې رسـول اللـه صـلی عليه وسلم راغی او ويې وېـل: چـې کـوم کـس تـه د اللـه تعـالی او يـا هـم د هغـه د مخلوق څخـه کومـه اړتيـا او حاجـت وي نـو هغـه دې دوه رکعتـه نفـل وکـړي او دا کلمات دې ووايي:

لَا اِلَهَ اِلّا الله الْحَلِيْمُ الْكَـرِيْمُ سُـبْحَانَ الله رَبِّ الْعَـرْشِ الْعَظِـيْمِ اَلْحَمْـدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ اللّٰهمّ اِنّيْ اَسْئَلُک مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِک وَ عَزَائِمَ مَغْفِرَتِک وَ الْغَنِيْمَةَ مِنْ كُلِّ بِـرٍّ وَ

السّلَامَةَ مِنْ كُلِّ اِثْمٍ اَسْئَلُکَ اَنَ لّا تَدَعْ لِيْ ذَنْبًـا اِلّا غَفَرْتَـهُ وَ لَا هَمًّـا اِلّا فَرَّجْتَـهُ وَ لَا حَاجَةً هِيَ لکَ رِضًا اِلّا قَضَيْتَهَا لِيْ.

بيا د دنيا او آخرت کومه خبره هم چې وي هغه څرګنده کړئ. الله تعالی مطلق قدرت لروونکی دی. [۱۱۶]

په دې سره به الله تعالی په هر کار کې دومره مرسته راسره وکړي چې زمونږ يوه اړتيا به هم پاتې نشي. ان شاء الله تعالی

❋ ❋ ❋

---

[۱۱۶](ابن ماجه/ بَابُ مَا جَاءَ فِي صَلاَةِ الْحَاجَةِ/ رقم الحديث: ۱۳۸۴)

## د الله تعالی ذکر د مجاهد تعرضي توره او دفاعي کلا

د الله تعالی لخوا له مجاهدینو سره د نصرت د اسبابو په موضوع کې مو وویل چې د الله تعالی ذکر د مجاهد لپاره تر هر څه مهم دی. ځکه الله تعالی فرمایي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُواْ وَاذْكُرُواْ اللهَ كَثِيراً لَّعَلَّكُمْ تُفْلَحُونَ. (الانفال/ ۴۵) ژباړه: «ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو) کله چې مخامخ شئ له کوم پوځ (د دښمن) سره (چې جنګ درسره کوي) نو ثابت قدم اوسئ تاسي (او مه ترې تښتئ) او یادوئ تاسي الله ډیر (په خوله او زړه) ښایې چې تاسي په مراد ورسیږئ (په بري سره پر دښمن د ذکر په برکت)».

الله تعالی په دې آیت کې د ثابت قدمی لپاره لوی لامل د الله تعالی ذکر یادوي. د مجاهد لپاره مهمه ده چې په هر حالت کې د الله تعالی ذکر وکړي.

د مجاهدینو لپاره د «علیکم بسنتی» کتاب چې عبدالجلیل آخندزاده لیکلی تر هر کتاب ډېر مهم دی. مجاهدین ملګري باید دا کتاب له ځان سره داسې وګرځوي لکه ټوپک چې ځومره لازمي ګرځوي. د سهار او ماښام اذکار، د جنګ پر مهال اذکار، او د عام ژوند اذکار هغه لازمي شیان دي چې باید یو مجاهد یې هم پرېنږدي. الله جل جلاله فرمایي:

وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ ٱلشَّمْسِ وَقَبْلَ ٱلْغُرُوبِ. (ق/۳۹)

ژباړه: «او تسبیح ووایه پیوست له حمده د رب خپل پخوا له راختلو د لمر یعني لمونځ د صبا او پخوا له لویدلو د لمر څخه یعني لمونځونه د ماسپښین او د مازدیګر».

د دې آیت په رڼا کې ویلی شو چې د سهار او ماښام اذکار باید هر مجاهد په حتمي توګه ولولي.

د سهار او ماښام اذکار په دې ځای کې ځکه نه رانقلوم چې د علیکم بسنتي کتاب مهم والی درک کړو او خامخا یې له ځان سره وساتو او هر وخت کې د همغه وخت اذکار خامخا ووایو.

د سهار او ماښام اذکار زمونږ او تاسو د حفاظت لپاره تر هر څه مهمه وسله ده.

همدا راز هغه دعاوې چې د جهادي حالتونو لپاره راغلي: اللّٰهُمَّ إِنَّا نَجْعَلُكَ فِيْ نُحُوْرِهِمْ، وَنَعُوْذُ بِكَ مِنْ شُرُوْرِهِمْ. (ابو داود)

ژباړه: الهي! مونږ تا د دوی مقابلې ته گرځوو، او په تا سره د دوی له شر نه پناه غواړو.

له دې پرته په لوړ شمېر دعاوې داسې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د جهاد پر مهال لوستلي دي او مجاهدینو ته پکار ده چې د همېش لپاره یې ووایي.

ما دا ټولې دعاوې په دقت سره راټولې کړي دي خو په دې ځای کې یې تر را اخیستلو دا مهمه گڼم چې د علیکم بسنتي کتاب پر اهمیت لږ رڼا واچول شي.

د کوم قوم نه چې وېره احساس کړل شي د هغوی په خلاف دعا.

د جنگ پر مهال دعا.

د دښمن له محاصرې نه د وتلو دعا.

د دښمن له نظر نه د ځان ساتنې او پټیدو اذکار

دا دعاوې او له دې پرته نورې ډېرې دعاوې دي چې د مجاهد لپاره مهمې دي او د علیکم بسنتي په وړوکي کتاب کې ټولې راټولې کړل شوې دي.

علیکم بسنتي د هر مجاهد لپاره ډیر گټور کتاب دی او مطالعه باید لازمې وگڼل شي!.

* * *

# پنځم باب:

## مجاهد ته! درې لنډې خبرې

- ❖ د شرعي دورې اهميت
- ❖ د نبوي سيرت ارزښت
- ❖ د صحابه کرامو د ژوند حالات

## د شرعي دورې اهميت

په امير باندې د رعيت د حقوقو په موضوع کې مونږ وويل چې کوم امير چې په داسې حال کې مړ کيږي او يا شهيد کيږي چې له خپل رعيت سره د غدر په حالت کې وي نو له خپل رعيت سره به جنت ته داخل نشي. په دې لړ کې يوه خبره دا وه چې په امير باندې د رعيت په حقوقو کې د مادي حقوقو تر څنگ مهمه موضوع د هغوی معنوي حقوق دي. امير باندې لازمه ده چې د خپلو افرادو د تربيې لپاره زمينه مساعده کړي، پخپله هم او خپل ټول افراد هم وخت په وخت ديني علماوو ته کښېنوي او د هغوی په لارښوونې باندې عمل وکړي.

زما مجاهده وروه! امکان لري چې امير دې په دې موضوع کې سستي وکړي، يا هم حالات دا اجازه ورنکړي چې ستا لپاره د شرعي درس زمينه مساعده کړي او يا هم داسې يو مجاهد عالم نشي موندلی چې د راز لخوا يې هم پرې پوره اعتماد وي او هغه ستا د درس لپاره راولي، اوس نو داسې مکوه چې ته ووايې چې دا خو مې د امير مسئوليت و او هغه نه دی عملي کړی زه به څه وکړم؟ که دې له امير څخه دا کمزوري شوې وي، ته پخپله پخپلو ملگرو کې ځان ته يو داسې ملگری وټاکه چې ته ترې درس ووايې او يا يو عالم ته پخپله ورځه! خو که دا يو هم نشې کولی نو دا خو دې فريضه ده چې د مجاهدينو علماء کرامو درسونه ځان ته په ام پي ترې کې واچوې او د عادي مجلسونو او يا هم عادي ترانو تر اورېدلو د علماء کرامو لارښوونو ته ارزښت ورکړې! او لږ تر لږ د ټولې ورځې په جريان کې خو يو ساعت د علماوو تقريرونه واورې. الحمدلله اوس خو د مجاهدو علماوو ويناوې ډېرې زياتې شوي دي، که مخکې يواځې استاد ياسر رحمه الله و چې د حق وينا يې خلکو ته ورسوله خو اوس د اميرالمؤمنين شيخ صيب هبة الله آخندزاده حفظه الله په شمول د ډېری علماء کرامو داسې لارښوونې موندل کيږي چې د هر مجاهد لپاره

تر خوراک او څښاک هم مهمې دي. هېڅکله دا خبرې بـابېزه مـه گڼـه! د تـل لپـاره کوښښ کوه چې د يوه مهال وېش سره سم د ورځې کم څه کم يو ساعت د علماوو تقريرونو ته غوږ شې او په هغه باندې د عمل په موخه کوښښ پيل کـړې! همـدا راز هېڅکله دا فکر مکوه چې دا درسونه خو د مدرسو کـار دی، صـحابه کرامـو چـې د جهاد پر مهال کوم احاديث زده کړي او هغه يې امت ته رسولي دي د امت لپـاره بـه د محشر تر ورځې پورې د لارې بل مشالونه وي، سره له دې چـې ټوپـک او چانټـه درسره دي خو د همدې ټوپک تر څنگ کوښښ کوه چې د الله تعـالی او د رسـول الله صلی الله عليه وسلم په وېناوو بانـدې د ځـان د پـوه کولـو او د هغـوی د عمـلي کولو په موخه شرعي درسونو ته ډېر ارزښت ورکړې!.

* * *

# د نبوي سيرت ارزښت

د جهادي ژوند په مراحلو کې چې مجاهدين له کومو مسائلو سره مخ کيږي ډېرى يې د عملي کولو له امله الحمدلله اوس هر مجاهد ته معلوم دي، خو کله چې يو مجاهد د الله تعالى او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په اوامرو باندې د عمل په موخه خپل سر په لاس کې نيسي او هر قسم قربانۍ ته تياريږي د داسې مجاهد لپاره خو دا ډېره مهمه ده چې کم څه کم د رسول الله صلى الله عليه وسلم سيرت په پوره دقت سره يو وار خو مطالعه کړي. د رسول الله صلى الله عليه وسلم د سيرت په موضوع باندې په سلګونو او زرګونو کتابونه ليکل شوي دي او حتى چې په پښتو او فارسي ژبو هم هر رنګه لنډ او اوږده کتابونه پيدا کيږي، د هر مجاهد امير څخه هيله کوم چې د الله په خاطر! او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مينې په خاطر په خپلو ملګرو باندې د سيرت درس ووايئ او که يې درس نشئ پرې ويلى نو کم تر کمه د نبوي سيرت داسې کتابونه خو ورته راوړئ چې هغوى يې وګوري او له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د تعارف له لارې محبت پيدا کړي. او له هر مجاهد څخه د ا غوښتنه کوم چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د محبت په خاطر خو د هغه (صلى الله عليه وسلم) په سيرت باندې پوره ځان پوه کړه او که دې مطالعه هم له وسه نه کيږي نو اقلا د مجاهدينو علماوو هغه تقريرونو ته خو غوږ کېږده چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د سيرت بيانونه يې کړي دي. د رسول الله صلى الله عليه وسلم په ژوند کې چې څومره غزوات او سريې شوي دي هغه ټول ستا لپاره د لارې مشالونه دي، نو بايد چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم جهادي ژوند خو په کامله معنا درمعلوم وي او په ډېر دقت سره پوره وخت ورکړې او ځان پرې پوه کړې!.

چې ته د خپل نبي صلى الله عليه وسلم په جهادي ژوند پوه شې ته به په خپل جهاد پوره باوري يې او د لا ډېر خوند احساس به کوې! د رسول الله صلى الله عليه

وسلم سيرت چې په کامله معنا درمعلوم وي بيا به پخپل جهادي ژوند کې قدم په قدم د هغه صلی اللّٰه عليه وسلم له ژوند سره موجوده جهادي حالات مقايسه کوې! په کومو شيانو کې چې عمل درنه پاتې دی عمل به دې پرې راشي او په کومو برخو کې چې ته يې عملي کوې د عملي تطبيق له برکته به دې په زړه کې د رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه وسلم مينه داسې ځای ونيسي چې د ژوند په يوه سخته شېبه کې به دې هم هېر نشي.

همدا نن د رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه وسلم د محبت لپاره د هغه صلی اللّٰه عليه وسلم سيرت پيل کړه!

* * *

# د صحابه کرامو د ژوند حالات

د اسلامي دین په نشرولو کې چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ملګرو کوم کردار سرته رسولی دی هېڅکله د هېرولو نه دی. دا چې نن زه او ته په زغرده ځانونو ته مسلمانان او مجاهدین وایو دا د هغو رضي الله عنهم د قربانیو نتیجه ده. هو! چا ته چې په ژوند کې د جنت زیري راځي، چا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپلو سترګو لیدلی او ایمان یې پرې راوړی هغوی داسې قرباني ورکړې چې امت یې تر قیامته پوروړی دی. د هر مجاهد لپاره لازمه ده چې د صحابه کرامو سیرت خامخا د ځان لپاره د لارې مشال وګرځوي. دا چې نن زه او ته د جهاد نوم اخیستلی شو او کفارو په مقابل کې مو توره راپورته کړې ده دا ټول د صحابه کرامو د هغو قربانیو برکت دی چې امت به یې تر قیامته پوروړی وي.

که ما او تا ته د بني قینقاع غزا او د هغه لامل نه وي معلوم چې صحابه کرامو د یوې صحابیې لپاره څومره قرباني ورکړه او په کوم رقم یې سرکښ ظالم ته سزا ورکړه نو نن به د خپلو مؤمنو خویندو دفاع څنګه وکړو؟!

هو! هغو خلکو چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سیرت او د صحابه کرامو د ژوند واقعې د عمل په موخه نه دي کتلي نو نن د مؤمنو خویندو د خلاصون تصور هم نه لري. جهاد ته خو د الله تعالی د فضل له امله راوتلي یو، خو که علی البصیرة وي نو هم به مو د ګمراهۍ ټول اسباب قطع کړي وي او هم به د جهاد په هغه شوق په کامله معنا پوهېږو چې صحابه کرامو په کوم شوق سره د الله تعالی په لاره کې جهاد کاوه!

# وروستۍ خبرې

مؤمنانو ورونو! د حق د لارې مجاهدین او رښتیني علماء کرام هېڅکله ستاسو ناکامي نه غواړي. د الله تعالی احکام یې په همدې موخه درته رسولي دي چې د الله په حضور کې یې خپل مسئولیت هم ادا کړی وي او تاسو لپاره یې هم د کامیابۍ لارې روښانه کړې وي.

د ټول کتاب له سلګونو آیتونو او احادیثو څخه به دا درته معلومه شوې وي چې معاصر وخت کې جهاد فرض عین دی او حکم یې داسې دی لکه د فرض لمانځه او د فرض روژې... نو که له نن وروسته هم له جهاد څخه پاتې شې د الله تعالی په حضور کې به کوم ځواب ورکوې؟؟؟

الله تعالی فرمايي: وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ الایه (النساء/۷۵) یعني: «او څه مانع ده تاسي ته چې جنګ نه کوئ تاسي په لاره د الله کې (د دین د ترقۍ لپاره) او په (خلاصولو) د ضعیفانو کې چې سړي دي او ښځې دي او هلکان دي.

د الله تعالی په همدې آیت باندې پوره فکر وکړئ او مخکې تر دې چې د محشر په ورځ هغه سزاوې درکړل شي چې مونږ بیان کړې نن په هغه صف کې ځان ځای کړئ چې د محشر په ورځ به په هسکو سترګو ولاړ یئ!

که نن هم جهاد ته نه ووځئ نو د الله په حضور کې به بیا د هغو پیغلو ځواب څه شی ورکوئ چې د کفارو له زندانونو څخه یې ستا په نامه رالېږي؟ د الله په حضور کې به څه ځواب ورکوې چې همدا معصومې پېغلې دې له ګرېوان څخه ونیسي او د الله تعالی حضور ته دې کش کوي چې یا رب! مونږ د ایمان په جرم په زندانونو کې و او همدا کس په هغه وخت کې ځوان و خو زما دفاع یې نه ده کړې! بیا به کوم ځواب ورکوې؟؟؟

ای د جهادي کاروان څخه پاته شوې وروره! د مسلمانو خویندو پیغامونه دې غیرت نه راپورته کوي؟؟؟ د کفارو یرغل درته د شرم خبره نه ده؟؟؟ د اللّٰه تعالی د قرآن بې عزتي درته خپله بې عزتي نه ښکاري؟؟

چې نن هم د جهاد سنگر ته رانشې؛ نو بیا کله؟؟

پای

د ۱۴۴۱ کال، د جمادي الثانیه میاشت، د جمعې مبارکه شپه

## د عرش قندیلونه

**جانانــــــه! ستومانــه دې کړم انتظار - - - - - زړگی مې دردیړي دی ډېر نا قرار**

**دا تنـــــــده د زړه رانه غواړي وصــال - - - - - حبیبــــــه! دا وینې د تن له تا ځار**

**سینــه مې د عشـق په لـمبو کړئ تــگور - - - - چې یار مـې خـبر شي د هجـر لـه زور**

**په اور کې روان یم په خیــال وي جنت - - - - رښتیا چې دې مینه لري دومره شـور**

**خلیل یــم لـــه اور سره میـــنه لـــرم - - - - نو ځکه سور اور سرې لمبې شي گلذار**

**خوښ کړی مې تا تــه په تحــفه کې - - - - خپل سر قبول کړه پـه وینـو لړلـی بشـر**

**د عرش قندیلو کې مې مــه تـم کـوه - - - بس داسې خوشـال یـم چـې وینـم دلـبر**

**مـین یـم مـین یمـه ژونـده پرېـږده - - - - پـه دار کـې یـې وینـم د سـترگو دیـدار**

**لېمــو کــې مــې اوښــکې اشــنا یــادوي - - - - قلـم پـه سـتایلو آقــــا یــادوي**

**بـس یـاد وي همـېش لېونـو تـه تسل - - - - دی ځـان ترېنـه هېـر هاغـه تـا یـادوي**

**نقیبـه! کـه خـدای کـړم قبـول لـه دنیـا - - - - پـه نـاز بـه یـې ورم هـر قـدم تـر انگـار**

* * *